وَاَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ۝

# دُرَسُولُ اللّٰه صلى الله عليه وآله وسلم مُؤنځ

## دَحَنفِي فِقهِي دَتدوِين مُطابِق



تاليف


مناظر اسلام جامع المنقول و
المعقول شيخ القرآن و الحديث
حضرت العلامة ابو ابراهيم
رحيم الله الحقاني الافغاني
دامت بركاتهم العالية



زيرِ اہتمام
اَهلِ السُّنّة والجماعة العالمي
نديم ټريډ سنټر محله جنګي قصه خواني بازار پشاور

## کتاب ځانګړني

د کتاب نوم: د رسول الله صلی الله علیه وسلم لمونځ د حنفي تدوین مطابق .

لیکوال: سلطان المناظرین الشیخ رحیم الله الحقاني الافغاني حفظه الله

کمپوز: اتل شهید طالب العلم ضیاء الرحمن مدني تقبله الله .

چاپ: اول وار.

د چاپ ځای: **اهل السنة والجماعة العالمي**

مسؤل اداره: مولوي هدایت الله بدر

دتر لاسه کولو ځای: ندیم مارکیټ محله جنګي قصه خوانی پېښور




## یادونه:

دشیخ القران والحدیث حضرت العلامه ابو ابراهیم رحیم الله الحقاني حفظه الله تعالی ټول تصانیف داهل السنة والجماعة العالمي اداري څخه تر لاسه کولی شئ.


مسؤل

مولوي هدایت الله (بدر)

۰۳٤۸-٤۳۱۹٥٤۱

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين والصلوة والسلام على سيد المرسلين قايد الجهاد والمجاهدين وعلى اله وصحبه اجمعين.

اما بعد: د حضرت ادم عليه السلام څخه تر رسول الله صلى الله عليه وسلم پورې الله تعالى د انسان د هدايت لپاره دوه شيان را ليږلي دي: (١) وحې (٢) انبياء او رسولان د رسولانو وظيفه د وحې تشريح ده، الله تعالى فرمايلي دي:

لتبين للناس ما نزل اليهم.

نو حجت صرف وحې ده، الله تعالى حقيقي شارع دی او رسول الله صلى الله عليه وسلم مجازي شارع دی، رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل ځان څخه هيڅ شي ته حلال او حرام نه دي ويلي، بلکې هر څه د الله تعالى له طرفه بيانوي، الله تعالى فرمايلي دي چې:

وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى

الله تعالى د وحې په ذريعه باندې درې قسمه احکام را ليږلې دي:

**اول: اعتقاديات**

**دوهم: منصوصي فروع**

**دريم اجتهاديات**

اعتقاديات او منصوصي فروع واضح مسائل دي، تشريح او دقران اودسنت څخه استنباط ته ضرورت نلري،لهذا د اعتقادياتو او دمنصوصي فروعو په اثبات کې مجتهد ته ضرورت نشته او اجتهاديات دقران او دسنت د بيخ څخه استنباط او راويستلو ته ضرورت لري او دا استنباط د مجتهد کار دی،نو مجتهد مسائل نه جوړوي بلکې ظاهره وي يې، د اصول فقه علماوو فرمايلي دي

چې القياس مظهر لا مثبت ، لکه کوهي ويستونکی ، چې دزمکې د بيخ څخه اوبه را وباسي، نو کوهي ويستونکي ته د اوبو پيدا کونکی نه وايي، بلکې د اوبو ظاهره ونکی ورته وايي ، همدارنګه مجتهد ته دمسايلو راپيدا کونکی نه وايي .بلکې دٔ مسائلو ظاهره ونکی ورته وايي.

نو د امام ابو حنيفه رحمه الله په شمول امامانو مجتهدينو چې کوم اجتهادي مسايل بيان کړي دي، دا د الله تعالى او دالله د پيغمبر صلى الله عليه وسلم مسايل دي امامانو ته يې نسبت صرف ددې له وجې کيږي چې د الله تعالى او د الله تعالى د پيغمبر صلى الله عليه وسلم مراد يې ښکاره کړی دی، لکه دبخاري شريف احاديث چې درسول الله صلى الله عليه وسلم احاديث دي ، لکن امام بخاري رحمه الله ته يې صرف له دې وجې نسبت کيږي چې امام بخاري رحمه الله يې تدوين کړی دی.

لکن د رسول الله صلى الله عليه وسلم د پيشګويي مطابق چې:

**لعن اخر هذه الأمة اولها،** دی

ددې أمت وروستنی خلک به په مخکنيو باندې لعنت وايي.

داسې خلک پيدا شوي دي چې په امامانو خصوصاً په امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله باندې تهمت لګوي چې (معاذ الله) دقران او د حديث په خلاف يې مسايل بيان کړي دي، خصوصاً د لمانځه په باره کې د حنفي تدوين مطابق دنبوي لمونځ پورې استهزاء کوي، مونږ به د الله تعالى په توفيق سره په دې مختصره رساله کې دا ثابته کړو چې دحنفي تدوين مطابق دغه نبوي لمونځ په صحيحو احاديثو ثابت دی او ددې په مقابله کې نورې طريقې مرجوحې دي.

**العبد الاحقر :**

**رحيم الله الحقاني الافغاني**

## د لمونځ اهميت

قال الله تعالی: إِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ

بېشکه چې لمونځ منعه کوي (لمونځ کونکی) له بې حيايۍ او بد کار څخه.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې:

بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ

**داسلام پنځه بناوې دي:**

اول: دا شاهدي ويل چې الله تعالی يو دی او محمد صلی الله علیه وسلم دالله تعالی رسول دی، دوهم: لمونځ سم ادا کول، دريم: ذکوة ورکول، څلورم: حج کول، پنځم: روژه نيول.

**د اذان کلمات پنځلس دي:**

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ، قَالَ: لَمَّا أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاقُوسِ يُعْمَلُ لِيُضْرَبَ بِهِ لِلنَّاسِ لِجَمْعِ الصَّلَاةِ طَافَ بِي وَأَنَا نَائِمٌ رَجُلٌ يَحْمِلُ نَاقُوسًا فِي يَدِهِ، فَقُلْتُ: يَا عَبْدَ اللَّهِ أَتَبِيعُ النَّاقُوسَ؟ قَالَ: وَمَا تَصْنَعُ بِهِ؟ فَقُلْتُ: نَدْعُو بِهِ إِلَى الصَّلَاةِ، قَالَ: أَفَلَا أَدُلُّكَ عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ مِنْ ذَلِكَ؟ فَقُلْتُ لَهُ: بَلَى، قَالَ: فَقَالَ: تَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ[1]

عبد الله ابن زيد رضی الله عنه فرمايلي دي چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم لمونځ ته دخلکو د راغونډولو لپاره دناقوس دغږولو حکم وکړو، نو ما په خوب

[1] سنن ابی داود ج ۱ ص ۷۹، باب کیف الاذان.

کې يو سړی وليدلو چې ناقوس ورسره وو، ما هغه ته وويل چې ای د الله بنده ايا دا ناقوس خرڅوې؟ هغه راته وويل چې په ناقوس څه کوې، ما ورته وويل چې په دې باندې د لمانځه لپاره خلک را بولم، نو هغه راته وويل چې ايا ددې څخه بهترې کلمې درته ونه ښايم؟، ما ورته وويل چې وې ښايه، نو هغه راته وويل چې داسې ووايه:

اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ

نو کله چې سهار د خوب څخه را پاڅيدم، د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شوم او څه مې چې په خوب کې ليدلي وو هغه مې ورته واورول، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم راته وفرمايل چې: دا خوب حق دی، ته د بلال سره ودريږه او کومې کلمې چې دې ليدلي دي هغه ورته وښايه، بلال به هغه کلمې د اذان په طرز وايي، ځکه چې د هغه اواز ستا څخه اوچت دی، زه د حضرت بلال رضی الله عنه سره ودريدم او هغه ته مې کلمې ښودلې او هغه اذان کولو، حضرت عمر رضی الله عنه دا اواز په کور کې واوريدلو، نو څادر يې په ځان پسې راکاږلو او په منډه راغلو، عرض يې وکړو چې يا رسول الله! په هغه ذات مې دې قسم وي چې ته يې په حقه راليږلی يې ما هم په خوب کې همداسې کلمات ليدلي دي، رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې: ثنا او صفت د الله تعالی لپاره دی.

## داقامت کلمات اوولس دي:

اقامت د اذان په شان دی، صرف دوه ځلې قد قامت الصلوة په کې زيات دی.

(۱) عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رحمة الله عليه، قَالَ: حَدَّثَنَا أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ زَيْدٍ الْأَنْصَارِيَّ رضي الله عنه جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ كَأَنَّ رَجُلًا قَامَ وَعَلَيْهِ بُرْدَانِ أَخْضَرَانِ عَلَى جِذْمَةِ حَائِطٍ، فَأَذَّنَ مَثْنَى، وَأَقَامَ مَثْنَى». (۱)

حضرت عبد الله ابن زید رضی الله عنه فرمايلي دي چې يو سړی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلو ورته وې فرمایل چې یا رسول الله ما په خوب کې د دوو شنو څادرونو والا وليدل چې په دېوال يې اذان او اقامت وفرمايلو، د دواړو کلمات يې دوه دوه ځلې ولوستل.

(۲) عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى رحمة الله عليه قَالَ: أَخْبَرَنِي أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ زَيْدٍ الْأَنْصَارِيَّ رضي الله عنه رَأَى فِي الْمَنَامِ الْأَذَانَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبَرَهُ فَقَالَ: «عَلِّمْهُ بِلَالًا رضي الله عنه» فَأَذَّنَ مَثْنَى مَثْنَى، وَأَقَامَ مَثْنَى مَثْنَى. (۲)

حضرت عبد الله ابن زید الانصاري رضی الله عنه په خوب کې اذان وليدلو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلو او خپل خوب حال يې ورته وويل، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل چې هغه کلمات بلال رضی الله عنه ته وښايه، نو حضرت بلال رضی الله عنه اذان وکړو او بيا يې اقامت وکړو، د اذان او اقامت کلمات يې دوه دوه ځلې ولوستل

---

[1] -[مصنف ابن ابي شيبة ج/۱ ص۲۰۳].

[2] -[طحاوي ص۹۳].

(۳) عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: «كَانَ أَذَانُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَفْعًا شَفْعًا فِي الأَذَانِ وَالإِقَامَةِ»([1])

حضرت عبدالله بن زيد ﷺ فرمايي چې د رسول الله ﷺ د اذان او د اقامت کلمات دوه دوه ځله لوستل کيدل.

**د اذان او اقامت طريقه:**

عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِبِلَالٍ: «يَا بِلَالُ، إِذَا أَذَّنْتَ فَتَرَسَّلْ فِي أَذَانِكَ، وَإِذَا أَقَمْتَ فَاحْدُرْ([2])

حضرت جابر رضى الله عنه فرمايلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت بلال ته وويل چې اى بلاله د اذان کلمات په ورو ورو وايه او د اقامت کلمات زر زر لوله.

يعنې د اذان کلمات په دوه دوه ساګانو او د اقامت په يوه ساه باندي لوله، د اذان کلمات داسې لوله:

| | |
|---|---|
| الله اکبر الله اکبر | الله اکبر الله اکبر |
| اشهدان لااله الاالله | اشهدان لااله الاالله |
| اشهد ان محمدرسول الله | اشهد ان محمدرسول الله |
| حى على الصلوة | حى على الصلوة |
| حى على الفلاح | حى على الفلاح |
| الله اکبر | الله اکبر |

[1] –(رواه الترمذى ج ا ص ۲۷. باب ما جاء ان الاقامت مثنى مثنى)

[2] –(رواه الترمذى، ج ا ص ۴۸، باب ما جاء فى الترسل فى الاذان)

| |
|---|
| لااله الاالله |

او د اقامت کلمات په يوه يوه ساه باندې داسې لوله:

| |
|---|
| الله اکبر الله اکبر الله اکبر الله اکبر |
| اشهـــدان لااله الاالله اشهـــدان لااله الاالله |
| اشهد ان محمدرسول الله اشهد ان محمدرسول الله |
| حی علی الصلوة حی علی الصلوة |
| حی علی الفلاح حی علی الفلاح |
| الله اکبر الله اکبر |
| لااله الاالله |

په کوم حديث کې چې راغلي چې د اقامت کلمات يو يو ځلي وو، نو دهغو احاديثو همدا معنی ده چې د اقامت کلمات په يوه يوه ساه لوستلی کيدل

## د جمعې د لمانځه لپاره دوه اذانه سنت دي

١- عن السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ رضي الله عنه، يَقُولُ: «إِنَّ الأَذَانَ يَوْمَ الجُمُعَةِ كَانَ أَوَّلُهُ حِينَ يَجْلِسُ الإِمَامُ، يَوْمَ الجُمُعَةِ عَلَى المِنْبَرِ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، فَلَمَّا كَانَ فِي خِلاَفَةِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، وَكَثُرُوا، أَمَرَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَوْمَ الجُمُعَةِ بِالأَذَانِ الثَّالِثِ، فَأُذِّنَ بِهِ عَلَى الزَّوْرَاءِ، فَثَبَتَ الأَمْرُ عَلَى ذَلِكَ».(١)

حضرت سايب بن يزيد رضي الله عنه فرمايي چې: د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ابوبکر رضي الله عنه او د عمر رضي الله عنه په زمانه کې به اذان په هغه وخت کې کيدلو کله به چې امام په ممبر

---

١-[بخاري ج١/ص١٢٥، وابوداؤد ج١/ص١٥٥، ونسائي ج١/ص١٥٦].

باندې کیناستلو، بیا د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت زمانه راغله او خلک زیات شول، نو حضرت عثمان د دریم اذان (د جمعې اول اذان) حکم وکړو نو په زوراء مقام کې دا اذان وشو او بیا دا یو مستقل سنت شول.

ددې اذان مخالفت هیڅ صحابي، هیڅ تابعي، هیڅ تبع تابعي او هیڅ مجتهد نه دی کړی، بلکې د انګریزانو د دورې څخه مخکې هیڅ مسلمان نه دی کړی او د رسول الله صلى الله علیه وسلم ددې حکم په موجودګی کې به یې څرنګه مخالفت کوي چې علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین؟ ددې حدیث مطابق دا اذان سنت دی، دا اذان په زوراء کې کیدلو، بیا په مسجد کې شروع شو، د عهد عثمان څخه تر ننه پورې په مکه او په مدینه کې د مسجد په داخل کې کیږی او تر ننه پورې ددې غیر مقلدینو د نجسې ډلې څخه بغیر هیچا پرې اعتراض نه دی کړی.

لامذهبانو ددې صحابه وو دې سنت ته بدعت وایي لامذهبه محمد جو ناګهړ وغیره لامذهبان لیکي چې: پس هماری زمانی مین مسجد مین جودو اذانین هوتی هین وه صریح بدعت هین او کیسی طریح جایز نهین.(۱)

بعضې غیر مقلدین جوابونه کوي چې ددې اذان دپاره علت داوو چې خلک ډیر شول او یو آذان ورته نه کافي کیږي، اوس خو لاسپیکر شته نو دې اذان ته ضرورت نشته.

قلنا: چې که داسې علل تاسو راوباسئ نو بیا به یو کمونست پنځه وخته اذان ته هم چوتې ورکړي، ځکه چې دلته به هم علت راوباسي چې پنځه وخته اذان ددې دپاره کیدلو چې خلکو ته د مانځه وختونه معلوم شي اوس خو ساعتونه د هر چا سره شته او

۱-[فتاوی ستاریه ج۳/ص۸۵ فتاوی علماء حدیث ج۲/ ص۱۷۹].

هر چا ته د مانځه وخت معلوميږي ، لهذا اوس پنځه وخته اذان ته ضرورت نشته، او يا يو کمونست و وايي چې روژه د اقتصادي کمزورۍ له وجې نيول کېده نو اوس اقتصادي کمزوري له مينځه تللې نو روژې ته هم ضرورت نشته ،آيا دا استدلال به يې صحيح وي؟.

**هر لمونځ په خپل وخت کې کول فرض دي:**

په يو وخت کې د دوو لمونځونو يو ځای کول (جمع بين الصلاتين) ناجايز دي

(۱) قران : إِنَّ الصَّلَوٰةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَٰبًا مَّوْقُوتًا (۱)

بيشکه چې لمونځ دی پر مومنانو باندې فرض کړی شوی په معلوموا وقاتو کې. کله چې لمونځ په معلوم وقت کې فرض شو او د وقت څخه مخکې فرض ندی نو اداء به يې څرنګه د وقت څخه مخکې جايزه شي؟ لکه يو سړی چې فرضي حج په خپل وخت کې نکوي، بلکې درمضان په مياشت کې يې وکړي، نو دده حج بالکل نه کيږي، يا لکه د رمضان شريف د روژو لپاره الله ﷻ وقت مقرر کړی دی، لکن که څوک د معينې مياشتې د راتلو څخه درې مياشتې مخکې روژې ونيسي، نو فرض يې نه اداکيږي، يا لکه يو څوک چې د جمعې د ورځې لمونځ د چهارشنبې په ورځ وکړي، نو د جمعې لمونځ يې نه اداکيږي، همدارنګې څوک چې د مرګ څخه مخکې جنازه وکړي، همدارنګې د وخت څخه مخکې لمونځ فرض ندی نو څرنګه به اداء شي؟ امام ابوداود فرمائي چې: (ليس في جمع التقديم حديث قايم). د وخت څخه مخکې د لمانځه د اداء کولو لپاره هيڅ صحيح حديث نشته .

۱ -(نساء ايت ۱۰۳)

(۲) الله ﷻ فرمائي:

حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى

ساتنه کوئ تاسي پرټولو لمونځونو او خصوصاً په لمانځه منځني (چې مازيګر دی) يعنې هر لمونځ خپل وقت کې کوئ.

(۳) الله ﷻ فرمائي:

فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا.

پس پيدا شول پس له دوي څخه داسي بدخليفګان چې ضايع کړو دوي لمونځ او متابعت وکړو دوی د شهواتو، پس ژر به يو ځای شي دوي له بد عاقبت سره.

فائده: بې وخته لمونځ کول هم د لمونځ ضايع کول دي.

(٤) الله ﷻ فرمائي:

فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ.

پس تباهي ده دپاره د لمونځ کونکو هغو چې دوي له لمانځه خپله غافله وي (پخپلو اوقاتو او ادابو سره يې نه ادا کوي).

نو هغه څوک چې د ماسپښين د لمانځه څخه غافله وي او په مازديګر کې د ماسپښين او د مازديګر دواړو لمونځونه وکړي (جمع التاخير وکړي) او د ماښام د لمانځه څخه غافله وي او په ماخوستن کې يې وکړي (جمع التاخير وکړي) نو هغه هم د دې ايت مصداق دی.

(۱) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ؛ قَالَ: مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلَاةً بِغَيْرِ مِيقَاتِهَا، إِلَّا صَلَاتَيْنِ: جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ، وَصَلَّى الْفَجْرَ قَبْلَ مِيقَاتِهَا.(۱)

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائي چې ما هيڅکله رسول الله ﷺ ندی ليدلي چې بې وقته لمونځ يې کړی وي، مګر دوه لمونځونه، د ماښام او ماخوستن د حج په موقع کې او پدغه ورځ يې د سهار لمونځ د خپل معتاد وقت څخه مخکې وکړو.

(۲) وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَمَا إِنَّهُ لَيْسَ فِي النَّوْمِ تَفْرِيطٌ، إِنَّمَا التَّفْرِيطُ عَلَى مَنْ لَمْ يُصَلِّ الصَّلَاةَ حَتّٰى يَجِيءَ وَقْتُ الصَّلَاةِ الْأُخْرٰى(۲)

په طحاوی کې الفاظ داسې دي چې:

«لَيْسَ فِي النَّوْمِ تَفْرِيطٌ إِنَّمَا التَّفْرِيطُ فِي الْيَقْظَةِ أَنْ تُؤَخِّرَ صَلَاةً حَتّٰى يَدْخُلَ وَقْتُ أُخْرٰى».(۳)

رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې په خوب کې تفريط يعنې قصور نشته، تفريط په ويښه کې دی چې يو سړی لمونځ نکوي تردې چې د بل لمانځه وخت راشي.

(۳) امام محمد رحمه الله فرمائي چې ماته د ثقه راويانو په ذريعه خبر رارسيدلی دی چې حضرت عمر رضی الله عنه ټولو اسلامي علاقو ته خطونه وليګل او خلک يې د جمع بين الصلوتين څخه منع کړه او وی ليکل چې په يو وقت کې دوه لمونځونه کول ګناه کبيره ده.(۴)

---

۱- متفق عليه بخاری. ج ۱ ص ۲۲۸) کتاب المناسک مسلم. ج ۱ ص ۴۱۸ کتاب الحج.

۲- مسلم شريف ج/۱ ص ۲۳۹.

۳- طحاوي باب الجمع بين الصلوتين ج/۱ ص ۱۱۴.

۴- مؤطا امام محمد ص ۱۳۲ باب الجمع بين الصلوتين.

فائدة: په کومو احاديثو کې چې دا راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ماسپښين او د ماز ديګر لمونځونه يو ځاى وکړل، همدارنګه يې د ماښام او ماخوستن لمونځونه يو ځاى وکړل، نو د هغې څخه حقيقي يو ځاى کول مراد نه دي، بلکې صوري يو ځاى کول ترې مراد دي.

(۱) عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَعْجَلَهُ السَّيْرُ فِي السَّفَرِ يُؤَخِّرُ الْمَغْرِبَ حَتَّى يَجْمَعَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْعِشَاءِ قَالَ سَالِمٌ وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ يَفْعَلُهُ إِذَا أَعْجَلَهُ السَّيْرُ(۱)

د حضرت عبد الله بن عمر ﷛ څخه روايت دى چې ما رسول الله ﷺ وليدلو چې کله به يې په سفر کې تلوارو، نو د ماښام لمونځ به يې وروسته کولو تر دې چې د ماخوستن د لمونځ سره به يې يو ځاى کړو، حضرت سالم ﷛ فرمائي چې حضرت عبد الله بن عمر ﷛ به هم همداسې کول، چې کله به يې په سفر کې تلوارو نو اقامت به يې د ماښام وکړو بيا به يې درې رکعته لمونځ وکړو د سلام څخه وروسته به يې لږ انتظار وکړو او د ماخوستن لمونځ به يې وکړو... الخ.

په دې حديث کې تصريح شوى ده چې حضرت عبد الله بن عمر ﷛ به د ماښام د لمانځه څخه د فارغيدلو څخه وروسته لږ انتظار کولو او د هغې څخه وروسته به يې د ماخوستن لمونځ کولو او د دې انتظار بله وجه نشي کيدى سوى د دې نه چې هغه د ماخوستن د وخت داخليدو يقيني کيدل غوښتل، حافظ ابن حجر اقرار کړى دى چې دا حديث د جمع صوري دليل دى (۲).

۱- بخاري، ج ۱ ص ۱۴۹ ابواب تقصير الصلوة.

۲- (فتح الباري، ج ۲ ص ۴۶۵.

(۲) عَنْ نَافِعٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ وَاقِدٍ، أَنَّ مُؤَذِّنَ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: الصَّلَاةُ، قَالَ: سِرْ سِرْ، حَتَّى إِذَا كَانَ قَبْلَ غُيُوبِ الشَّفَقِ نَزَلَ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ، ثُمَّ انْتَظَرَ حَتَّى غَابَ الشَّفَقُ وَصَلَّى الْعِشَاءَ، ثُمَّ قَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا عَجِلَ بِهِ أَمْرٌ، صَنَعَ مِثْلَ الَّذِي صَنَعْتُ»(۱)

د نافع رحمه الله عن عبد الله بن واقد رحمه الله په طريقې سره روايت دی چې د عبد الله بن عمر رضي الله عنه مؤذن و فرمايل چې د ماښام د لمانځه وخت دی. حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه ورته و فرمايل ځه ځه (سِر سِر) تردې چې نږدې شو غروب د شفق (اخروخت د ماښام شو) نو راکوز شو او د ماښام لمونځ يې وکړو، بيا يې انتظار وکړو تردې چې شفق زايل شو (ماخوستن داخل شو) نو د ماخوستن لمونځ يې وکړو، بيا يې و فرمايل چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله تلوار وو نو کول به يې داسې لکه ما چې وکړل.

ابوداود شريف نه يوائې دا چې په دې حديث باندې سکوت کړی دی بلکې د دې يو متابع يې هم ذکر کړی دی چې الفاظ يې دا دي: (عن عبدالله بن العلاء عن نافع قال حتي اذا كان عند ذهاب الشفق نزل فجمع بينهما) او امام دار قطني دا روايت په بې شميره طريقو ذکر کړی دی او سکوت يې پرې کړی دی.(۲)

(۳) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم بِالْمَدِينَةِ ثَمَانِيًا جَمِيعًا وَسَبْعًا جَمِيعًا أَخَّرَ الظُّهْرَ وَعَجَّلَ الْعَصْرَ وَأَخَّرَ الْمَغْرِبَ وَعَجَّلَ الْعِشَاءَ(۳)

---

۱-(ابوداود ج ۱ ص ۱۷۱) باب الجمع بين الصلوتين)
۲-(ج ۱ ص ۳۹۳).
۳-(سنن النسائی ۵۸۹ المواقيت باب ۴۴

دابن عباس رضی الله عنه ښخه روایت دی فرمائي چې ماد رسول الله ﷺ سره لمونځ وکړو اته رکعته یوځای (دماسپښین او مازیګر ځلور ځلور رکعته) او اوه رکعته یوځای (دماښام دري رکعته او دماخوستن ځلور رکعته) رسول الله ﷺ د ماسپښین لمونځ وروسته کړو خپل اخروخت ته او د مازیګر لمونځ یې رامخکې کړو خپل اول وخت ته او د ماښام لمونځ یې وروسته کړو خپل اخروخت ته او د ماخوستن لمونځ یې رامخکې کړو خپل اول وخت ته.

**د سهر دلمانځه لپاره مستحب وخت:**

د سهر لمانځه لپاره مستحب وخت رڼایي ده.

عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «أَسْفِرُوا بِالفَجْرِ، فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلأَجْرِ»(۱)

حضرت رافع ابن خدیج رضی الله عنه ښخه روایت دی چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم ښخه واوریدل چې د سهر لمونځ بنه په رڼا کې کوئ، ځکه چې په دې ثواب زیات دی.

عَنْ رَافِعِ ابْنِ خَدِيْجٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبِلَالٍ أَسْفِرْ بِصَلٰوةِ الصُّبْحِ حَتّٰى يَرَى الْقَوْمُ مَوَاقِعَ نَبْلِهِمْ (۲)

د حضرت رافع ابن خدیج رضی الله عنه ښخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت بلال ته وفرمایل چې د سهر لمونځ په رڼا کې کوه، په دومره رڼا کې چې خلک د خپلو غشو د لګیدلو ځایونه ووینې.

---

۱- رواه الترمذی، ج۱ص ۴۰، باب ما جاء فی الاسفار بالفجر

۲-(مسند ابی داود الطیالسی، ج۱ص ۵۱۱، رقم الحدیث، ۱۰۰۱)

## د ماسپښين د لمانځه لپاره په ګرمۍ کې مستحب وخت:

د ماسپښين د لمانځه لپاره په ګرمۍ کې مستحب وخت د هوا تر يخيدلو پورې وروسته کول دي.

په ترمذي کې دابو ذر ﷺ روايت دی چې:

أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ وَمَعَهُ بِلَالٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، فَأَرَادَ أَنْ يُقِيمَ، فَقَالَ: أَبْرِدْ، ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يُقِيمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَبْرِدْ فِي الظُّهْرِ، قَالَ: حَتَّى رَأَيْنَا فَيْءَ التُّلُولِ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ، فَأَبْرِدُوا عَنِ الصَّلَاةِ.)(١)

رسول الله ﷺ په سفر کې وو او د رسول الله ﷺ سره حضرت بلال هم وو حضرت بلال اراده داقامة وکړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل يخني کړه (يخنۍ کې اقامة وکړه) بيا حضرت بلال ﷺ اراده داقامة وکړه، بيا ورته رسول الله ﷺ وفرمايل چې په ماسپخين کې يخني کړه، راوي فرمايې تردې چې مونږ دغونډيو سوري وليدل، بيا حضرت بلال ﷺ اقامت وکړو، بيا ورته رسول الله ﷺ وفرمائل چې بيشکه شدة دګرمۍ د جهنم دبړاس څخه دی نو يخني راوله دلمانځه څخه)

پدې حديث کې دفيئ التلول ذکر دی (دغونډيو د سوري) اودعربو غونډۍ پلنې او خورې دي، دهغوی سوري دنورو شيانو دمثل اول څخه بعد ښه ناوخته ښکاره کيږي اودغونډۍ په مقدار کيږي څوک چې هلته اوسيدلی وي، هغه به مشاهده کړې وي، او دچا چې تردد وي هغه دې په مشاهده باندې خپل شک زايل کړي.

---

١- ترمذي: باب ماجآء في تاخير الظهر في شدة الحر بخاري ج١ صفحه ٧٦-٧٧.

(۴) په بخاري ص ۸۷ و ص ۸۸ کې روایت دی چې:

عَنْ أَبِي ذَرٍّ رضي الله عنه، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَأَرَادَ المُؤَذِّنُ أَنْ يُؤَذِّنَ، فَقَالَ لَهُ: «أَبْرِدْ»، ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يُؤَذِّنَ، فَقَالَ لَهُ: «أَبْرِدْ»، ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يُؤَذِّنَ، فَقَالَ لَهُ: «أَبْرِدْ» حَتَّى سَاوَى الظِّلُّ التُّلُولَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ شِدَّةَ الحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ»(١)

دا روایت د مخکیني روایت په نسبت ډیر ظاهر دی ځکه چې په دې روایت کې داسې راغلي دي چې کله چې د غونډیو سوري د غونډیو سره برابر شول نو نبی ﷺ بیا د اذان اجازه ورکړه هلته د غونډیو سوري په هغه وخت کې د غونډیو سره برابرېږي چې د اشیاؤ منتصبه وو سوري دیو مثل څخه اوښتي وي نو چې په دې وخت کې د أذان اجازت ورکړل شو نو مونځ خو لږ وروسته کیږي، نو ضرورةً د ماسپښین مونځ د مثل اول د ختمیدلو څخه سنة وروسته شوي دي.

**د ماسپښین د لمانځه لپاره په ژمي کې مستحب وخت:**

د ماسپښین د لمانځه لپاره په ژمي کې اول وخت مستحب دی.

عن أَنَس بن مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم إِذَا كَانَ الْحَرُّ أَبْرَدَ بِالصَّلاَةِ وَإِذَا كَانَ الْبَرْدُ عَجَّلَ(٢)

حضرت انس رضی الله عنه فرمایلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به په اوړي کې د ماسپښین لمونځ په یخ وخت کې ادا کولو او په یخنۍ کې به یې وختي اداء کولو.

---

١- بخاري ص ۸۷ و ص ۸۸

٢-(سنن نسائي ج ا ص ۸۷، باب تعجیل الظهر فی البرد)

**د مازدیګر د لمانځه لپاره مستحب وخت:**

د مازدیګر د لمونځ وروسته کول مستحب دي، خو دومره وروسته کول یې نه دي جایز چې لمر زیړ شي.

(۱) عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رضي الله عنها، أَنَّهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ تَعْجِيلًا لِلظُّهْرِ مِنْكُمْ، وَأَنْتُمْ أَشَدُّ تَعْجِيلًا لِلْعَصْرِ مِنْهُ (۱)

ام المؤمنین ام سلمة رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ د ظهر لمونځ ستاسو څخه مخکې کولو او تاسو د عصر لمونځ د انحضرت ﷺ څخه مخکې کوئ.

(۲) عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ كَانَ يَأْمُرُهُمْ بِتَأْخِيرِ الْعَصْرِ (۲)

د رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به دوي ته امر کولو په وروسته کولو د لمانځه د ماذیګر

(۳) عَنِ الْأَعْمَشِ رضي الله عنه قَالَ: «كَانَ أَصْحَابُ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنهم يُعَجِّلُونَ الظُّهْرَ، وَيُؤَخِّرُونَ الْعَصْرَ. (۳)

د حضرت اعمش رضي الله عنه څخه روايت دی چې د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ملګرو او شاګردانو به د ظهر لمونځ مخکې کولو او د عصر لمونځ به یې وروسته کولو.

(٤) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رحمة الله عليه أَنَّهُ كَانَ يُؤَخِّرُ الْعَصْرَ حَتَّى أَقُولَ: قَدِ اصْفَرَّتِ الشَّمْسُ (۴)

---

۱-(ترمذي صفحه ۵۱) (مسند احمد صفحه ۲۸۹ ج ۶) مشکاة ج ا ص ۶۲

۲-(بیهقي صفحه ۴۴۳ وهامشه الجوهر النقی صفحه ۴۴۱ ج ۱)

۳-(مصنف عبدالرزاق ج ۱ صفحه ۵۴۰)

۴-(مصنف ابن ابي شیبه صفحه ۳۲۷ ج ۱)

حضرت سوار بن شیب ﷺ فرمايي چې: ابو هريرة ﷺ به د ماذيګر لمونځ دومره وروسته کولو چې ما به ګمان کاوه چې لمر زیړ شو (یعني زیړوالي ته نزدي شو)

(٥) عن عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ رضي الله عنه قَالَ: «قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ فَكَانَ يُؤَخِّرُ الْعَصْرَ مَا دَامَتِ الشَّمْسُ بَيْضَاءَ نَقِيَّةً». (١)

علي بن شيبان ﷺ فرمايي چې زه په مديني منورې کې د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو رسول الله ﷺ به د ماذيګر لمونځ وروسته کولو ترڅو به چې لمر سپين اوصاف وو (د اصفرار څخه مخکې به يې کولو)

(٦) عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله عليه قَالَ: «كَانَ مَنْ قَبْلَكُمْ أَشَدَّ تَعْجِيلًا لِلظُّهْرِ، وَأَشَدَّ تَأْخِيرًا لِلْعَصْرِ مِنْكُمْ»(٢)

ابراهيم نخعي رحمه الله فرمايي چې ستاسو څخه مخکې خلکو د ظهر لمونځ ستاسو په نسبت مخکې کولو او د عصر لمونځ به يې ستاسو په نسبت وروسته کولو نور يو څو دلايل د دوهم قسم رواياتو لاندې ليکل شوي دي.

**د ماښام دلمانځه لپاره مستحب وخت:**

د ماښام لمونځ د اسمان په کنارو کې د سپين والي تر غائبيدو پورې جايز دی، لکن مستحب دا دی چې په اول وخت کې ادا شي.

عَنْ سَلَمَةَ قَالَ كُنَّا نُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَغْرِبَ إِذَا تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ(٣)

د حضرت سلمه رضی الله عنه څخه روایت دی چې مونږ به د لمر د ډوبيدلو سره سم د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د ماښام لمونځ کولو.

١-(ابو داؤد صفحه ۵۹ ج ۱ ابن ماجه صفحه ۴۸)

٢-(مصنف عبدالرزاق ج ا صفحه ۵۴۰)

٣-(رواه البخاري، ج ا صـ ۷۹، باب وقت المغرب)

### د ماخوستن د لمونځ لپاره مستحب وخت:

د ماخوستن لمونځ د شپې په نيمايي يا په دريمه حصه کې اداء کول مستحب دي.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرْتُهُمْ أَنْ يُؤَخِّرُوا العِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ أَوْ نِصْفِهِ» (۱)

د حضرت ابی هريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې که زما سره د امت د مشقت ويره نه وای نو ما به دوي ته حکم کړی وای چې د ماخوستن لمونځ د شپې تر دريمې حصې پورې او يا تر نيمې شپې پورې وروسته کړئ.

### وقت الجمعة هو وقت الظهر (د جمعې د مانځه وقت ماسپښين دی)

۱- عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الجُمُعَةَ حِينَ تَمِيلُ الشَّمْسُ». (۲)

رسول الله ﷺ به د جمعې مونځ د زوال څخه وروسته کولو.

۲- عَنْ إِيَاسِ بْنِ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه، قَالَ: «كُنَّا نُجَمِّعُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ، ثُمَّ نَرْجِعُ نَتَتَبَّعُ الْفَيْءَ». (۳)

حضرت سلمة بن الاكوع رضي الله عنه فرمايي چې: مونږ به د جمعې مونځ د زوال څخه وروسته کولو.

۳- عَنْ جَابِرٍ رضي الله عنه كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ صَلَّى الْجُمُعَةَ. (٤)

---

۱- (رواه الترمذی، ج۱ ص۴۲، باب ماجاء فی تأخير العشاء الاخره)

۲- [بخاری ج۱/ ص۱۲۳].

۳- [مسلم ج۱/ ص۲۸۳].

۴- [معجم طبرانی الاوسط بحواله التلخيص الحبير ج۱/ ص۵۹].

رسول الله ﷺ به د جمعې مونځ په هغه وخت کې کولو کله به چې زوال وشو.

٤- عن مالك بن ابی عامر رضی الله عنه أنه قَالَ: «كُنْتُ أَرَى طِنْفَسَةً لِعَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رضی الله عنه يَوْمَ الْجُمُعَةِ تُطْرَحُ إِلَى جِدَارِ الْمَسْجِدِ الْغَرْبِيِّ، فَإِذَا غَشِيَ الطِّنْفَسَةَ كُلَّهَا ظِلُّ الْجِدَارِ خَرَجَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضی الله عنه إِلَى الصَّلَاةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، ثُمَّ نَرْجِعُ، فَنَقِيلُ قَائِلَةَ الضَّحَاءِ». (۱)

حضرت مالک بن أبی عامر فرمايي چې: د حضرت عقيل بن ابی طالب څادر به مغربي ديوال ته پروت وو نو ما به ليدل چې کله به دا څادر د ديوال په سوری کې پټ شو نو حضرت عمر رضی الله عنه به راووتلو او د جمعې مونځ به يې وکړو، بيا به مونږ د جمعې د مانځه څخه وروسته واپس کيدلو او د غرمې قيلوله به مو کوله.

٥- عَنْ أَبِي الْقَيْسِ عَمْرِو بْنِ مَرْوَانَ، عَنْ أَبِيهِ رحمهما الله، قَالَ: «كُنَّا نُجَمِّعُ مَعَ عَلِيٍّ رضی الله عنه، إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ». (۲)

مروان فرمايي چې: مونږ به د علی رضی الله عنه سره د جمعې مونځ د زوال په وخت کې کولو.

٦- سِمَاكٍ رحمة الله عليه، قَالَ: «كَانَ النُّعْمَانُ بْنُ بَشِيرٍ رضی الله عنه يُصَلِّي الْجُمُعَةَ بَعْدَمَا تَزُولُ الشَّمْسُ» (۳)

نعمان بن بشير رضی الله عنه به د جمعې مونځ د زوال څخه وروسته کولو.

٧- عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ الْعَيْزَارِ رحمة الله عليه، قَالَ: «مَا رَأَيْتُ إِمَامًا كَانَ أَحْسَنَ صَلَاةً لِلْجُمُعَةِ مِنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ رضی الله عنه، كَانَ يُصَلِّيهَا إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ». (۴).

۱-[مؤطا امام مالک ص۶].

۲-[مصنف ابن ابی شيبة ج۲/ ص۱۰۸].

۳-.[مصنف ابن ابی شيبة ج۲/ ص۱۰۸].

۴-[مصنف ابن ابی شيبة ج۲/ ص۱۰۹].

ولید بن عیزار رحمة الله علیه فرمايي چې ما هيڅ امام ندی ليدلی چې ښایسته مونځ يې کړی وی د عمرو بن حريث رضي الله عنه څخه، ده رضي الله عنه ، به د جمعې مونځ د زوال په وخت کې کولو.

۸- عَنِ الْحَسَنِ رحمة الله علیه، قَالَ: «وَقْتُ الْجُمُعَةِ عِنْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ». (۱)

حضرت حسن بصری رحمه الله فرمايي چې: د جمعې د مانځه وقت د لمر د زایلیدو وخت دی.

۹- عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمة الله علیه، قَالَ: «وَقْتُ الْجُمُعَةِ وَقْتُ الظُّهْرِ». (۲)

ابراهيم نخعي رحمة الله علیه فرمايي چې د جمعې د مانځه وخت د ماسپښين وخت دی.

۱۰- امام بخاری رحمة الله علیه د جمعې د وخت لپاره داسې باب لګولی دی چې: باب وقت الجمعة اذا زالت الشمس وكذلك عن عمرو رضي الله عنه وعلی رضي الله عنه والنعمان بن بشير رضي الله عنه وعمرو بن حريث رضي الله عنه. (۳)

ددې احاديثو او اثارو څخه معلومه شوه چې د زوال څخه مخکې د جمعې مونځ نه کیږي، لکن ددې ټولو احاديثو او اثارو په خلاف غیرمقلدين ددين د ښمنان لیکي چې د جمعې مونځ د زوال څخه مخکې هم صحيح دی. (۴)

---

۱-[مصنف ابن ابی شيبة ج۲/ ص۱۰۸].

۲-[مصنف ابن ابی شيبة ج۲/ ص۱۰۹].

۳-[بخاری ج۱/ ص۱۲۳].

٤- الروضة الندية ج۱/ ص۱۳۷] ونزل الابرار ج۱/ ص۱۵۲].

## په محبسونو کې دجمعې په ورځ د ماسپښين لمونځ په جماعت باندې اداکول مکروه تحريمي دي

دپلچرخي په صليبي محبس کې ځينې غير مقلدينو دجمعې په ورځ دماسپښين لمونځ په جماعت باندې کولو په فقه باندې به يې اعتراض کولو اوپه دې کې يې هم مسلمانان دشر څخه محفوظ نه وو.

صاحب دهدايې فرمايي : ويكره ان يصلي المعذورون الظهر بجماعة يوم الجمعة في المصر وكذا اهل السجن) دبنديانو لپاره په داسې ځاى کې چې هلته دجمعې لمونځ کيږي دماسپښين لمونځ په جماعت باندې مکروه دی.(۱)

الامام الكاساني رحمه الله فرمايي : تكره صلوة الظهر يوم الجمعة بجماعة في سجن اوغير سجن.(۲) يعنې دجمعې په ورځ دماسپښين لمونځ په جماعت باندې مکروه دی بنديانو او غير بنديانو دواړو ته اوبيا فرمايي چې .

(۱) هكذا روي عن علي رضي الله عنه : يعنې دحضرت علي رضي الله عنه څخه همداسې روايت دی چې بنديانو اوغير بنديانو ته دجمعې په ورځ دماسپښين لمونځ په جماعت باندې مکروه دی .

(۲) حدثناعبدالسلام بن حرب عن القاسم بن الوليد قال : قال علي رضي الله عنه لاجماعة يوم الجمعة الامع الامام . رواه ابوبكربن ابي شيبه في مصنفه .(۳)

---

۱- هداية ج۱ ص ۱۸۰ باب صلوة الجمعة

۲-(بدايع الصنايع ج۱ ص ۶۰۵ مايستحب يوم الجمعة)

۳- اعلاء السنن حديث نمبر۲۰۶۱)

(۳) عن علي ﷺ قال : لايجمع القوم الظهريوم الجمعة في موضع يجب عليهم فيه شهود الجمعة صاحب د كنزالعمال فرمايي چې : وقد تاييد بمرسل القاسم فحصل للمجموع قوة.(۱)

علامه كاساني فرمايي چې:

(۴) وهكذا جري التوارث باغلاق ابواب المساجدفي وقت الظهر يوم الجمعة .(۲)

يعنې دصحابه وو ،تابعينو ،اوتبع تابعينو څخه شروع تر ننه پورې به د جمعې په ورځ دورو مساجدو دروازې بنديدلې ،دماسپښين په وخت کې په ټول دور صديقي کې ديو صحابي نوم هم په کوم مستند کتاب کې نه شته چې هغه دې د جمعې په ورځ په محبس يا غير محبس کې دماسپښين لمونځ په جماعت باندې کړی وي، په ټول دور عمري ﷺ کې دهيڅ صحابي يا تابعي نوم په کوم مستند کتاب کې نه شته چې هغه دی د جمعې په ورځ دماسپښين لمونځ په جماعت باندې کړی وي .

په هيڅ کوم مستند کتاب کې نه دي راغلي چې په ټول دور عثماني او دور علوي کې دې کوم بندي يا غير بندي د جمعې په ورځ دماسپښين لمونځ په جماعت باندې کړی وي بلکې د حضرت علي ﷺ څخه روايت دی چې دبنديانو لپاره په محبس کې د جمعې په ورځ دماسپښين لمونځ په جماعت باندې مکروه دي .(۳)

۱-[کنزالعمال ،ج ٤ص ٢٨٤ واعلاء السنن ،ج ٥ص ٤١٢٣ / حديث نمبر٢٠٦٢/ بدايع الصنايع ج١ص ٦٠٥].

۲-( بدايع الصنايع ج١ ٦٠٥)

۳-(بدايع الصنايع ج ١ ص ٦٠٥ باب مايستحب يوم الجمعة )

(٣) وَلِأَنَّ سَاكِنَ الْمِصْرِ مَأْمُورٌ فِيْ هٰذَا الْوَقْتِ بِشَيْئَيْنِ بِتَرْكِ الْجَمَاعَاتِ وَحُضُوْرُ الْجُمْعَةِ.(١)

يعنې د ښار او سيدونکې (بنديان وي او که غير بنديان وي) په دغه ورځ ورته دوه امره دي.

**اول** : دا چې نور جماعاتونه پريږدي.

**دوهم** : دا چې (فاسعوا الي ذکرالله) د جمعې لمانځه ته حاضر شي او بنديان او نور معذورين که دوهم کار نه شي کولی اول خو کولی شي، له دې وجې په دوي واجبه ده چې د جمعې په ورځ د ماسپښين لمونځ ځان ځان ته وکړي.(٢) (۴) وَلِأَنَّا لَوْ أَطْلَقْنَا لِلْمَعْذُوْرِ إِقَامَةَ الظُّهْرِ بِالْجَمَاعَةِ فِي الْمِصْرِ فَرُبَّمَا يَقْتَدِي بِهِ غَيْرُ الْمَعْذُوْرِ فَيُؤَدِّي إِلَى تَقْلِيْلِ جَمْعِ الْجُمُعَةِ، وَهٰذَا لَا يَجُوْزُ.(٣)

## نبوي لمونځ د حنفي تدوين مطابق

**نيت:**

**قال الله تعالى: اِنِّيْ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِيْفًا**

او ما متوجه کړو خپل مخ د هغه (الله) طرف ته چا چې جوړ کړل اسمانونه او ځمکه د ټول (مخلوق) څخه ځانته شوم او نه يم زه د شرک کونکو څخه

٢- رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې:

**إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ**

---

١-( بدايع الصنايع ج١ ص ٦٠٥)

٢-( بدايع الصنايع ج١ ص ٦٠٥).

٣-(بدايع الصنايع ج١ ص ٦٠٥).

بېشکه چې د اعمالو ښه والی او بد والی په نیت سره دی.

**په ژبه د نیت اظهار:**

په نیت کې خو اختلاف نشته چې نیت د زړه ارادې ته وایي او په دې کې هم اختلاف نشته چې که یو سړی په زړه کې د روژې او یا د لمونځ اراده وکړي او په خوله هیڅ ونه وایي نو د ده لمونځ او روژه صحیح شوه په ژبه د نیت اظهار ضروري نه دی.

پاتې شو په ژبه د نیت اظهار، نو په دې کې به د الله تعالی په توفیق سره دوه مسئلې ذکر کړو.

اول: په ژبه د نیت اظهار د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د صحابه وو څخه ثابت دی، چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابه وو په ژبه باندې د نیت اظهار کړی دی.

دوهم: چې په ژبه د نیت اظهار په هر قسم الفاظو کېدلی شي، یعنې په ژبه باندې د نیت په اظهار کې وسعت دی، وسعت دا معنی چې د خاصو الفاظو پابندي نشته ،د دې دواړو مسئلو لپاره به د الله تعالی په توفیق سره پنځه احادیث ذکر کړو.

اول: په صحیح مسلم کې حدیث دی چې:

عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ «يَا عَائِشَةُ، هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ؟» قَالَتْ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! مَا عِنْدَنَا شَيْءٌ قَالَ: (۱)

---

۱- «فَإِنِّي صَائِمٌ» ()(الحديث رقم ۲۷۰)

حضرت عايشة رضی الله عنها فرمايي چې: يوه ورځ راته رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې: يا عايشې! ايا ستاسو سره څه شته؟ حضرت عايشة رضی الله عنها فرمايي چې: ما وفرمايل چې نه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې: زما روژه ده. انتهى

نو پدې حديث کې ذکر شو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په ژبه د نيت اظهار وکړو

دوهم: په صحيح مسلم کې د بل حديث الفاظ داسې دي چې:

دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَقَالَ: «هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ؟» فَقُلْنَا: لَا، قَالَ: «فَإِنِّي إِذَنْ صَائِمٌ»(۱)

دريم: په سنن ابی داود کې حديث دی، حضرت عايشة رضی الله عنها فرمايي چې:

كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ عَلَيَّ قَالَ: «هَلْ عِنْدَكُمْ طَعَامٌ؟»، فَإِذَا قُلْنَا: لَا، قَالَ: «إِنِّي صَائِمٌ(۲)

څلورم: په ابو داود الطيالسي رقم (۱۴۵۵) کې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم داسې الفاظ رانقل شوي دي چې: «إِذًا أَصُومُ»

نوټ: ددې احاديثو لپاره محدثينو عنوان د نيت لګولی دی، معلوميږي چې ددې محدثينو په نيز ددې احاديثو تعلق د نيت سره دی.

۱-(رقم الحديث، ۲۷۰۱)

۲-(ابوداود رقم الحديث ۲۴۳۴،باب النية فى الصوم، لاندى باب الرخصة فيه اى فى ترك النية بالليل).

پنځم: امام بخاري صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صحيح البخاري کې باب قايم کړی دی چې: باب اذا نوی بالنهار صوماً، او بيا يې د پنځو صحابه وو رضی الله عنه عمل ذکر کړی دی چې هغوي په ژبه د نيت اظهار کړی دی:

**وَقَالَتْ أُمُّ الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: كَانَ أَبُو الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ: «عِنْدَكُمْ طَعَامٌ؟» فَإِنْ قُلْنَا: لاَ، قَالَ: «فَإِنِّي صَائِمٌ يَوْمِي هَذَا» وَفَعَلَهُ أَبُو طَلْحَةَ، وَأَبُو هُرَيْرَةَ، وَابْنُ عَبَّاسٍ، وَحُذَيْفَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ** )([1])

په دې حديث کې د پنځو صحابه وو عمل ذکر شو چې هغوي په ژبه د نيت اظهار کړی دی، امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ دې حديث ته عنوان د نيت قايم کړی دی، نو د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ په نيز د دې حديث تعلق د نيت سره دی.

نو د دې احاديثو څخه دواړه مسئلې ثابتې شوې، اوله دا مسئله ثابته شوه چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابه کرامو په ژبه د نيت اظهار کړی دی، او دوهمه دا مسئله ثابته شوه چې په ژبه د نيت اظهار په هر قسم الفاظو کيدلی شي ،ځکه چې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه څلور قسمه الفاظ رانقل شو، (۱-**فَإِنِّي صَائِمٌ**، ۲-**فَإِنِّي إِذَنْ صَائِمٌ**، ۳-**إِنِّي صَائِمٌ**، ۴-**إِذًا أَصُومُ**). د صحابه وو څخه پنځم قسم الفاظ رانقل شو چې: **فَإِنِّي صَائِمٌ يَوْمِي هَذَا**.

نو په ژبه د نيت په اظهار کې وسعت دی، د وسعت معنی دا ده چې د خاصو الفاظو پا[illegible]ي نشته، داسې هم ويلی شي چې: **بصوم غد نويت من شهر رمضان**،

---

[1] (صحيح البخاري).

داسې هم ویلی شئ چې سبا ته زما روژه ده یا سبا ته روژه نیسم وغیره ، هر قسم الفاظ جایز دي، دلمانځه لپاره د نیت هم همدا تفصیل دی.

۲- همدارنګه دحج او دعمرې لپاره په ژبه د نیت اظهار ثابت دی.

په رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې

۳- په ژبه باندې د نیت اظهار شرعي بدعت نه دي ، ځکه چې خپله مقصود نه دی، او نه په لمانځه کې داخل دی، بلکه د مقصود (توجه برابرولو) لپاره ذریعه ده، او کوم شی چې صرف د ذریعې په مرتبه کې وي په هغې باندې د بدعت شرعي تعریف نه صادقیږي ، کالمدارس العربية ومافيها من الامور المحدثة، البته د دې ضروري ګڼل بې شکه چې بدعت دی پاتې شوه دا خبره چې په ژبه باندې نیت معین د احضار القلب دی او که مغفل د قلب دی؟ په دیکې راجح اول قول رامعلومیږي .

اوپه ژبه داظهار دنیت سره دتوجوه دبرابریدل دحدیث نه ثابت دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې: لایستقیم ایمان الرجل حتی یستقیم قلبه، ولایستقیم قلبه حتی یستقیم لسانه (رواه احمد)

ایمان ترهغه پورې نشي سیده کیدلی ترڅو چې زړه سیده نشي او زړه ترهغه پورې نه سیده کیږي ترڅو چې ژبه سیده نشي.

نودژبی لپاره په زړه اثر شته په ژبه دنیت داظهار په وجه دزړه توجو برابریګی

شعر :ذکر آرد فکر را در اهتزاز ذکر را خورشید این افسرده ساز

علاوه لا دا چې د مانځه د صحت لپاره دومره استحضار کافي دی چې کديو څوک ناڅاپه پوښتنه وکړي نو فوراً ورته وويلي شي چې فلانکی مونځ کوم. فقط والله اعلم.(۱)

**قبلې ته مخ کول:**

**۱-قال الله تعالى: وحيث ماكنتم فولوا وجوهكم شطره. الاية**

او تاسو چې په هر ځای کې اوسيږئ نو وګرځوئ مخونه خپل په طرف د هغه (قبلې)

۲- رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې:

**إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ). (۲)**

چې کله لمونځ ته د ريدلو اراده وکړې، نو پوره اودس وکړه او بيا قبلې ته مخ کړه او تکبير ووايه..

**د تکبير ويلو په وخت کې قبلې ته مخ کول:**

ابو هريرة رضى الله عنه فرمايلي دي چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم يو سړي ته دلمونځ د طريقې د ښودلو په وخت کې وفرمايل چې:

**اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَكَبِّرْ**

قبلې ته مخامخ ودريږه او تکبير ووايه.

**قيام کول:**

۱- الله تعالى فرمايلي دي چې: وقوموا لله قانتين

---

۱-[احسن الفتاوي ج۳ص۱٤/باب صفة الصلوة وما يتعلق بها].

۲-(٤٦/۳۹۷)

او د الله تعالى په حضور کې په عاجزۍ سره ولاړ اوسئ.

۲- حضرت عمران ابن حصين رضى الله عنه فرمايلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې:

صَلِّ قَائِمًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى جَنْبٍ(۱)

په ولاړه لمونځ کوه که په ولاړه دې لمونځ نشو کولی، نو بيا په ناسته لمونځ کوه او که په ناسته دې هم نشو کولی نو بيا په اړخ لمونځ کوه.

**په صفونوکې د اوږو لګول سنت دي نه د پښو او فاصله بين القدمين:**

(۱) الله تعالى فرمايي: واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى، نو اصل دا دی چې په مقام ابراهيم کې ودريږي او لمونځ وکړئ او که ازدحام وي نو بيا د مقام ابراهيم سره نږدې دا لمونځ اداکيږي او په مقام ابراهيم چې د ريږي نو د اهل سنت والجماعت په شان به دې د پښو په مابين کې څلور خورې ګوتې او زيات نه زيات يوه لويشت فاصله راځي.

(۲) عن ابن عمر رضي الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «أَقِيمُوا الصُّفُوفَ وَحَاذُوا بَيْنَ الْمَنَاكِبِ. (۲)

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی، چې رسول الله ﷺ فرمائي چې صفونه برابر کړئ او اوږې سره برابرې کړئ.

(۳) عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رضي الله عنه، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَلَّلُ الصَّفَّ مِنْ نَاحِيَةٍ إِلَى نَاحِيَةٍ يَمْسَحُ صُدُورَنَا وَمَنَاكِبَنَا(۳)

---

۱-(رواه البخاري ج ۱ صـ ۱۵۰، باب اذا لم يطق قاعداً)

۲-(هـ ابوداود ج ۱ ص ۱۰٤).

۳-( ابوداود ج۱ ص ۱۰٤).

د حضرت براء بن عازب ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به په صفونو کې رانوتلو د يو طرف او بل طرف څخه او زمونږ سينې او اوږې به يې برابرولې.

(۴) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ، فَإِنِّي أَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي، وَكَانَ أَحَدُنَا يُلْزِقُ مَنْكِبَهُ بِمَنْكِبِ صَاحِبِهِ، وَقَدَمَهُ بِقَدَمِهِ. (۱)

حضرت انس بن مالک ﷺ فرمائي چې د لمانځه لپاره تکبير وشو، نو رسول الله ﷺ زمونږ ته متوجه شو او وې فرمايل چې صفونه مو برابر کړئ، او ونښتي ودريږئ، بې شکه چې زه تاسو د شا له طرف گورم او د حضرت انس ﷺ څخه په بل روايت کې دي چې مونږ به په صفونو کې اوږه د اوږې د خپل ملگري سره او قدم د قدم سره لگولو.

(۵) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «رُصُّوا صُفُوفَكُمْ وَقَارِبُوا بَيْنَهَا وَحَاذُوا بِالْأَعْنَاقِ. (۲)

حضرت انس ﷺ د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چې صفونه ونښلوئ او خپل څټونه يو د بل سره برابر کړئ.

(۶) عَنْ أَبِي الْقَاسِمِ الْجُدَلِيِّ رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ، قَالَ: سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، يَقُولُ: أَقْبَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى النَّاسِ بِوَجْهِهِ، فَقَالَ: «أَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ» ثَلَاثًا، «وَاللهِ لَتُقِيمُنَّ صُفُوفَكُمْ أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللهُ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ» قَالَ: فَرَأَيْتُ الرَّجُلَ يَلْزَقُ مَنْكِبَهُ بِمَنْكِبِ صَاحِبِهِ وَرُكْبَتَهُ بِرُكْبَةِ صَاحِبِهِ وَكَعْبَهُ بِكَعْبِهِ. (۳)

---

۱-(بخاری ج۱ص ۱۰۰).

۲-(هـ ابوداود ج ۱ ص ۱۰٤).

۳-(ابوداود ج ۱ ص ۱۰٤).باب تسوية الصفوف.

حضرت ابو القاسم الجدلی فرمائي چې ما د نعمان بن بشیر څخه واوریدل چې فرمایلی يې چې رسول الله ﷺ مونږ ته متوجه شو، نو درې ځلې يې وفرمایل چې خپل صفونه برابر کړئ، په الله ﷻ قسم دی چې تاسو به یا صفونه برابر وئ او یا به الله ﷻ ستاسو زړونه مخالف کړي.

حضرت نعمان بن بشیر رحمه الله فرمائي چې ددینه وروسته ما ولیدل چې خلکو به اوږه د خپل ملګري سره لـه او ږې سره لګوله، د ملګري د زنګون سره به يې خپل زنګون لګولو او د ملګري د خنګري سره به يې خپل خنګري لګولو.

(۷) عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَوِّي صُفُوفَنَا، فَخَرَجَ يَوْمًا فَرَأَى رَجُلًا خَارِجًا صَدْرُهُ عَنِ الْقَوْمِ، فَقَالَ: لَتُسَوُّنَّ صُفُوفَكُمْ أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللهُ بَيْنَ وُجُوهِكُمْ.(۱)

د حضرت نعمان بن بشیر رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به زمونږ صفونه برابرول، یوه ورځ راووتلو نو یو سړي يې ولیدلو چې سینه يې د صف څخه وتلې وه، نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې خامخا به تاسو یا صفونه برابروئ او که نه الله ﷻ به ستاسو په مخونو کې مخالفت واچوي.

(۸) عَنْ مَالِكِ بْنِ أَبِي عَامِرٍ الأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، كَانَ يَقُولُ فِي خُطْبَتِهِ: «إِذَا قَامَتِ الصَّلَاةُ، فَاعْدِلُوا الصُّفُوفَ، وَحَاذُوا بِالْمَنَاكِبِ(۲)

حضرت عثمان بن عفان به پخپله خطبه کې فرمایل چې کله چې د لمانځه لپاره اقامت وکړی شي، نو صفونه برابر کړئ او اوږې سره سیده کړئ.

---

۱-(هـ ترمذی ج ۱ ص ۵۳).

۲-(اهـ موطاء امام محمد ص ۸۸).

(۹) عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَ
تَصُفُّونَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلَآئِكَةُ عِنْدَ رَبِّهِمْ جَلَّ وَعَزَّ»، قُلْنَا وَكَيْفَ تَصُفُّ الْمَلَآئِكَةُ عِنْدَ رَبِّهِمْ
قَالَ: «يُتِمُّونَ الصُّفُوفَ الْمُقَدَّمَةَ وَيَتَرَاصُّونَ فِي الصَّفِّ»(۱)

رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمايل چې ايا تاسو د ملايکو په شان صفونه
جوړه وئ؟

مونږ عرض وکړو چې يارسول الله ﷺ ملايکې څرنګه صفونه جوړه وي؟
نبي کريم ﷺ وفرمايل چې مخکيني صفونه ډکوي او په صفونو کې يو د بل
سره نښتې دريږي.

نو په حديثونو کې درې قسمه الفاظ استعمال شول: اول (تراص): د دې
معنا نښلول. دوهم (التصاق). دريم (الزاق) د دې معنا هم نښلول او لګول دي.
او د څلورو شيانو نښلول ذکر شوي دي: د قدم، ښنګري، زنګون او د اوږې. او
د دې څلورو واړو لګول ممکن نه دي. که څوک يې د امکان دعوه کوي، نو په
مشاهده دې يې وښايي. لا مذهبان صِرف د پښو يوه يوه ګوته سره نښلوي او د
ګوتو د نښلولو ذکر په حديث کې نشته.

هر کله چې لغوي معني ممکنه نه ده، نو د حديثو شارحان رحمهم الله ليکي
چې: دلته د دې الفاظو څخه قرب او محاذات مراد دي. محمد انورشاه کشميري
رحمه الله فرمائي چې:

قال الحافظ المراد بذالك المبالغة فى تعديل الصف وسد خلله قلت وهو مراد
عند الفقهاء الاربعة اى ان لايترك فى البين فرجة تسع فيها ثالث (۱)

---

۱-(ابوداؤد ج ۱ صـ ۱۰۴) باب تسوية الصف.

يعني د څلورو واړو فقهاؤو په نيز معني دا ده چې د دؤو كسانو په مينځ كي به دومره فاصله نه وي چې دريم كس پكي ځائ شي، محمد بن صالح عثيمين فرمايي چې: ليس المراد بالمراصة، المراصة التي تشوش على الاخرين وانما المراد منه ان لايكون بينك وبينه فرجة. (٢)

**فقه حنفي :** وينبغي ان يكون بين قدميه اربع اصابع في قيامه .(٣)

**فقه شافعي:** ويسن ان يفرق بين قدميه بشبر .(٤)

**فقه مالكي:** يندب تفريج القدمين بان يكون المصلي بحالة متوسطة في القيام بحيث لا يضمهما ولا يفرجهما كثيراً.(٥)

**فقه حنبلي: وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما لَا يُفَرِّجُ بَيْنَ قَدَمَيْهِ، وَلَا يَمَسُّ إِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى، وَلَكِنْ بَيْنَ ذَلِكَ، لَا يُقَارِبُ وَلَا يُبَاعِدُ.** (٦)

نو د حنفي فقهې مطابق د خپو په مينځ كي كم ازكم څلور ګوتې او زيات نه زيات يوه وليشت فاصله پكار ده. او د شافعي فقهې مطابق يوه وليشت فاصله پكار ده، او د فقهې مالكي او د فقه حنبلي مطابق طبعي فاصله پكار ده. په فقه حنفي كي د څلورو ګوتو د فاصلې ذكر د اقل مقدار بيان دى. اكثر يوه وليشت

---

١- فيض الباري ج ١ صـ ٢٣٦

٢-(شرح رياض الصاليحن ج ١صـ ١٢٤٨)

٣-[فتاوي عالمكيرى ج ١ صـ ٧٣ الفصل الثالث في سنن الصلوة رد المختار ج ١ صـ ٦٣].

٤- [اعانة الطالبين ج ١ صـ ١٣٥ حاشيه الجمل ج ١ صـ ٢٤٧ تحفة المحتاج في شرح المنهاج ج ٥ صـ ٣٢١ نهاية المحتاج ج ٤ صـ ٨٥].

٥-[فقه العبادات مالكي ج ١ صـ ١٦١].شرح خليل للخرشي ج ٣صـ ٤٥٥، منح الجليل ج ٢صـ ٩٦)

٦-( المغني لابن قدامه ج ٣ صـ ١٢١ والقول الراجح مع الدليل ج ٢ صـ ٨٥].

دی . نو تقریباً د څلورو واړو فقهو مطابق د پښو په مینځ کي د فاصلې مقدار کم از کم څلور ګوتې، او زیات نه زیات یوه ولیشت شوه، د لا مذهبو فاصله بالکل دومره وي لکه د ګنج دروازه او په دې کې دا لاندې نقصانات دي.

۱) د پښو د دومره آزادولو سره د اوګو په مینځ کي فاصله زیاتیږي .

۲) غیر مقلدین په قیام کي پښې ازادوي او په سجده او تشهد کې یې راټولوي، چې دا د مونځ خشوع ته نقصان رسوي.

۳) په صفونو کي د دومره پراخه دریدلو سره د لسو کسانو ځای په پنځو کسانو ډکیږي .

۴) دومره ازادیدل او د ځنګ ملګري سره د پښو لګول د خشوع د ختمیدلو سبب دی.

۵) دومره پراخه دریدل د کبر او د بي ادبۍ علامه ده لا مذهبان د یو بادشاه او د افسر په مخکي داسي دریدل بي ادبي ګڼي ، او د رب العالمین په مخکي دا بي ادبي کوي .

٦) په دومره پراخه دریدلو باندي خپله د لامذهبانو بعضي مشرانو هم رد کړي دي، مولوي عبد الله روپړي لیکي چې: پښې ډیري پراخه نه دي او دریږئ چې اوږئ یې نه لریږي دوي غلطي کوي ځکه چې په دې حدیث کې لکه څرنګه چې د قدم دلګولو ذکر دی نو همدارنګه پکې د اوږو دلګولو ذکر هم دی. [ وګوره فتاوي علماء حدیث .(۱)

---

۱- ج ۱ ص ۲۱ و ج ٤ ص ٢٦٥]

٧) محمد انور شاه رحمه الله فرمائي چې : د صحابه ؤ او د تابعينو او د جمهورو سلفو څخه هيڅ داسې روايت نشته چې په هغې کې راغلي وي . چې د جماعت په مانځه کي د پښو په مابين کي زياته فاصله راولئ . او په انفرادي مونځ کي کمه فاصله راولئ . د فاصلې په اعتبار د جماعت د مونځ او د انفرادي مونځ په مينځ کي فرق د لامذهبو ايجاد دی.(١)

**د قيام په حالت کې د سجدې ځای ته کتل:**

١- رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت انس رضى الله عنه ته و فرمايل چې:

**اِجْعَلْ بَصَرَكَ حَيْثُ تَسْجُدُ (٢)**

خپل نظر د سجدې په ځای ساته.

٢- **وَيَشْخَصُ بِبَصَرِهِ اِلٰى مَوْضِعِ سُجُوْدِهٖ (٣)**

حضرت ابن عباس رضى الله عنهما فرمايلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې کله لمونځ کولو نو سترگې مبارکې به يې د سجدې په ځای خښې کړې وې.

**تکبير تحريمه ويل:**

١- الله تعالى فرمايلي دي چې: وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى

او د خپل رب نوم يې واخيستو پس بيا يې لمونځ وکړو.

٢- رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې:

**مِفْتَاحُ الصَّلٰوةِ الطُّهُوْرُ وَتَحْرِيْمُهَا التَّكْبِيْرُ (١)**

---

١- فيض الباري ج ٢ صـ ٢٣٧

٢-( السنن الكبرى للبيهقى ج ٢ صـ ٢٨٤، باب لا يجاوز بصره موضع السجود)

٣-(الترغيب والترهيب، ج ٢صـ ٤٢١، فصل فى الترهيب من الالتفات فى الصلوة)

دلمونځ کونجي اودس دی او دلمونځ تحريم الله اکبر ويل دي.

**د امام لپاره په زوره (جهر) تکبير ويل:**

۱ - عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ: اِشْتَكَى أَبُوْهُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَوْغَابَ فَصَلَّى أَبُوْسَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ فَجَهَرَ بِالتَّكْبِيْرِ حِيْنَ اِفْتَتَحَ وَحِيْنَ رَكَعَ(۲)

حضرت سعيد بن الحارث رضی الله عنه فرمايلي دي چې: يو ځلې ابو هريرة رضی الله عنه مريض شوی وو نو ابو سيعد خدري رضی الله عنه امامتي وکړه، نو تکبير يې په واچت (لوړ) اواز وويلو چې کله يې لمونځ شروع کړو او چې کله يې رکوع وکړه.

**دمقتدي لپاره په پټه (خفيه) تکبير ويل:**

حضرت عايشه رضی الله عنها د رسول الله صلی الله عليه وسلم د وفات دواقعې په بيان کې فرمايلي دي چې:

وَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهَادَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ يَخُطُّ بِرِجْلَيْهِ الْأَرْضَ فَلَمَّا رَآهُ أَبُوبَكْرٍ ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ فَأَشَارَ إِلَيْهِ أَنْ صَلِّ فَتَأَخَّرَ أَبُوبَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَقَعَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى جَنْبِهِ وَأَبُوبَكْرٍ يُسْمِعُ النَّاسَ التَّكْبِيرَ(۳)

رسول الله صلی الله عليه وسلم په دوه کسانو لاسونه اچولي وو او بهر را ووتلو، لکه زه چې اوس هم ورته گورم چې رسول الله صلی الله عليه وسلم پښې [مبارکې] په زمکه را ښکلې، کله چې ابو بکر صديق رضی الله عنه ته د رسول الله صلی الله عليه وسلم احساس وشو، نو وروسته کيدل يې شروع کړل، رسول الله صلی الله

---

۱-(سنن ابی داود، ج ۱ صـ ۹۸، باب فی تحريم الصلوة)

۲-(السنن الکبری للبيهقی، ج۲ صـ ۱۸، باب جهر الامام بالتکبير)

۳- (صحيح البخاري، ج ۱ صـ ۹۸، باب من أسمع الناس تکبير الامام)

علیه وسلم د ابوبکر صدیق رضی الله عنه څنګ ته کیناستلو او خلکو ته به یې (د رسول الله صلی الله علیه وسلم) تکبیر ور اورولو.

فائده: ددې څخه معلومیږي چې په بل وخت کې مقتدي په اوچت اواز سره تکبیر نه دی ویلی، بلکې د عذر په وخت کې ابوبکر صدیق رضی الله عنه په اوچت اواز سره خلکو ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم تکبیر ور اورولو.

**د اول تکبیر سره تر غوږونو پورې د لاسونو اوچتول:**

(۱) عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ رضی الله عنه, قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ فَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى سَاوٰى بِهِمَا أُذُنَيْهِ ثُمَّ لَمْ يَعُدْ.(۱)

حضرت براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی چی ما ولیدلو رسول الله ﷺ چی صرف د تکبیر تحریمه سره ئی لاسونه تر غوږونو پوری اوچت کړل.

(۲) عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ رضی الله عنه قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ لِافْتِتَاحِ الصَّلَاةِ, رَفَعَ يَدَيْهِ, حَتّٰى يَكُونَ إِبْهَامَاهُ قَرِيبًا مِنْ شَحْمَتَيْ أُذُنَيْهِ».(۲)

یعنی رسول الله ﷺ به د اول تکبیر سره لاسونه د غوږونو ترنرمیو پوری اوچتول.

(۳) وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رضی الله عنه: أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى كَانَتَا بِحِيَالِ مَنْكِبَيْهِ وحاذى بإبهاميه أُذُنَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ.(۳)

حضرت وائل رضی الله عنه فرمائی چی ما رسول الله ﷺ ولیدلو چی د تکبیر تحریمه په وخت کی یې لاسونه د اوږو او غټې ګوتې د غوږونو پورې پورته کړې.

---

۱-(دارقطنی: ج ۱/ص ۲۹٤ وطحاوی: ج ۱/ص ۱۳۵)

۲-(طحاوی: ج ۱/ص ۱۳۲ وص ۱۱۰ دارقطنی: ج ۱/ص ۳۰۰ وابوداود: ج ۱/ص ۱۰۹ باب من لم یذکر الرفع)

۳-(مشکوة باب صفة الصلوة الفصل الثانی: ج ۱/ص ۷٦/ ابوداود/ رقم / ۷۲٤).

(٤) عن عبد الجبار بن وائل عن أبيه رضي الله عنهما أنه، «رأى النبي صلى الله عليه وسلم إذا افتتح الصلاة رفع يديه حتى تكاد إبهاماه تحاذي شحمة أذنيه (١)

یعنې رسول الله ﷺ د اول تکبیر سره لاسونه د غوږونو تر نرمیو پورې پورته کړل.

(٥) عن وائل بن حجر رضي الله عنه قال: ... فقال لي رسول الله صلى الله عليه وسلم: «يا وائل بن حجر! إذا صليت فاجعل يديك حذاء أذنيك، والمرأة تجعل يديها حذاء ثدييها.(٢)

رسول الله ﷺ وفرمایل چې سړی به د غوږونو پورې او ښځه به د تیونو پورې لاسونه پورته کوي.

(٦) عن وائل بن حجر رضي الله عنه: أنه "رأى النبي صلى الله عليه وسلم رفع يديه حين دخل في الصلاة كبر - وصف همام رضي الله عنه حيال أذنيه.(٣)

حضرت وایل رضي الله عنه فرمائي چې ما رسول الله ﷺ ولیدلو چې د اول تکبیر سره ئې لاسونه اوچت کړل او الله اکبر ئې وویلو. د حدیث راوي همام بیان دی چې رسول الله ﷺ تر غوږونو پورې لاسونه اوچت کړل.

(٧) عن عامر بن عبد الله بن الزبير رضي الله عنهم، عن أبيه رضي الله عنه، قال: «رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم افتتح الصلاة، فرفع يديه حتى جاوز بهما أذنيه.(٤)

---

١-(نسائي: ج ١/ص١٤١/ رقم ٨٧٩ ).

٢- (معجم طبراني: ج ١/ص١٨)

٣-(مسلم: ج ١/ص١٧٣)

٤-( مسند احمد / رقم ١٥٦٦٧).

د حضرت عبد الله بن زبير رضی الله تعالى عنهما څخه روايت دی چې ده رسول الله صلى الله عليه وسلم وليدلو چې: د لمانځه د شروع کولو په وخت کې يې لاسونه له غوږونو څخه واړول.

(٨) عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ رضي الله عنه: «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ، وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيْهِ. (١)

مالک بن حويرث رضي الله عنه فرمائي چې رسول الله ﷺ به د الله اکبر په وخت کی لاسونه د غوږونو سره برابرول او په يو روايت کی راځی چی تر او چتې حصې د غوږونو پورې به يې او چتول.

(٩) عَنْ قَتَادَةَ رحمه الله، بِهَذَا الْإِسْنَادِ أَنَّهُ رَأَى نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ: حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيْهِ. (٢)

يعنی رسول الله ﷺ لاسونه د غوږونو تر پاسنی حصی پورې او چت کړل.

(١٠) حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چی رسول الله ﷺ به د غوږونو پورې لاسونه پورته کول. (٣)

(١١) امام بخاری / په جزء رفع اليدين کی روايت راوړی دی فرمائي چې:
عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ رحمه الله قَالَ: «كَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّوْا كَأَنَّ أَيْدِيَهُمْ حِيَالَ آذَانِهِمْ. (٤)

---

١-(بخاری /ج ١/ص١٠٢، ومسلم:ج ١/ص١٦٧)
٢-(مسلم:ج ١/ص١٦٨)
٣-(بهيقی:ج٢ص/٩٩ ودارقطنی ج ١/ص٣٤٥)
٤ (ص:٣٢)

حمید بن هلال فرمائی رحمه الله چې د رسول الله ﷺ صحابه وو رضی الله تعالی عنهم به په مانځه کې لاسونه تر غوږونو پورې او چتول.

(١٢) عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ حَكِيمٍ رحمة الله عليه، قَالَ: «رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةِ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، وَلَمْ يَرْفَعْهُمَا فِيمَا سِوَى ذَلِكَ.(١)

یعنی عبد الله بن عمر رضی الله تعالی عنهما به صرف د اول تکبیر سره لاسونه د غوږونو پورې او چتول.

(١٣) أَنَّ وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ رضي الله عنه أَخْبَرَهُ قَالَ: قُلْتُ: لَأَنْظُرَنَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ يُصَلِّي قَالَ: فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ "قَامَ وَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى حَاذَتَا بِأُذُنَيْهِ.

وایل بن حجر رضی الله تعالی عنه فرمايي چې: ما وويل چې زه به رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ګورم چې دی څرنګه لمونځ کوي؟ نو ما ورته وکتل چې ودریدلو او الله اکبر یې وویل او لاسونه یې تر غوږونو پورې او چت کړل. (٢)

(١٤) وَذَكَرَ الطِّيبِيُّ رحمة الله عليه أَنَّ الشَّافِعِيَّ رحمة الله عليه حِينَ دَخَلَ مِصْرَ سُئِلَ عَنْ كَيْفِيَّةِ رَفْعِ الْيَدَيْنِ عِنْدَ التَّكْبِيرِ؟ قَالَ: يَرْفَعُ الْمُصَلِّي يَدَيْهِ بِحَيْثُ يَكُونُ كَفَّاهُ حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِبْهَامُهُ حِذَاءَ شَحْمَتَيْ أُذُنَيْهِ، وَأَطْرَافُ أَصَابِعِهِ حِذَاءَ فَرْعِ أُذُنَيْهِ، لِأَنَّهُ جَاءَ فِي رِوَايَةٍ: يَرْفَعُ الْيَدَيْنِ إِلَى الْمَنْكِبَيْنِ، وَفِي رِوَايَةٍ إِلَى الْأُذُنَيْنِ، وَفِي رِوَايَةٍ إِلَى فُرُوعِ الْأُذُنَيْنِ، فَعَمِلَ الشَّافِعِيُّ رحمة الله عليه بِمَا ذَكَرْنَا فِي رَفْعِ الْيَدَيْنِ جَمْعًا بَيْنَ الرِّوَايَاتِ الثَّلَاثِ.(٣)

---

١-(موطاامام محمد:ص٩)

٢-[السنن الكبرى للبيهقی/ كتاب الصلاة/ باب وضع اليد اليمنى على اليسرى فى الصلاة و صحيح ابن حبان حديث: ١٨٦٠].

٣- (مرقات المفاتيح:ج٢/ص٢٥٤)

علامه طيبي رحمه الله فرمائي چې کله چې امام شافعي رحمه الله مصر ته راغلو، نو دده څخه پوښتنه وشوه چې د تکبير په وخت کې به لاسونه ترکوم ځاى پورې اوچتيږي؟

هغه رحمه الله ورته جواب ورکړو چې: ورغوي به تر اوږو او غټې ګوتې به ترنرميو د غوږونو او د ګوتو سرونه به ترپاسني حصې د غوږونو پورې پورته کوئ! ځکه چې په بعضې احاديثو کې د لاسونو اوچتول تر اوږو پورې راغلي دي او په بعضو کې تر نرميو د غوږونو پورې راغلي دي او په بعضو کې تر پاسنيو حصو د غوږونو پورې راغلي دي. نو امام شافعي رحمه الله په دريو واړو روايتونو عمل وکړو، چې ورغوي تر اوږو پورې، غټې ګوتې تر نرميو د غوږونو پورې او د ګوتو سرونه ترپاسني حصې د غوږونو پورې اوچتې شي، نو په درې واړو احاديثو عمل راځي.

(١٥) امام نووي الشافعي رحمه الله فرمايي چې:

وَأَمَّا صِفَةُ الرَّفْعِ فَالْمَشْهُورُ مِنْ مَذْهَبِنَا وَمَذْهَبِ الْجَمَاهِيرِ أَنَّهُ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ بِحَيْثُ تُحَاذِي أَطْرَافُ أَصَابِعِهِ فُرُوعَ أُذُنَيْهِ أَيْ أَعْلَى أُذُنَيْهِ وَإِبْهَامَاهُ شَحْمَتَيْ أُذُنَيْهِ وَرَاحَتَاهُ مَنْكِبَيْهِ فَهَذَا مَعْنَى قَوْلِهِمْ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ وَبِهَذَا جَمَعَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله تعالى بَيْنَ رِوَايَاتِ الْأَحَادِيثِ فَاسْتَحْسَنَ النَّاسُ ذَلِكَ مِنْهُ.([1])

يعنې زمونږ او د جمهورو طريقه د لاسونو د اوچتولو داده، چې تر اوګو پورې يې پداسې طريقه اوچت کړئ چې د ګوتو سرونه د غوږونو د پاسني حصې سره برابر شي او غټې ګوتې د غوږونو له نرميو سره برابرې شي او ورغوي دا وګو سره

١- (المجموع: ج٣/ص٣٠٧، نووي شرح مسلم: ج ١/ص١٦٨)

برابرشي او همدغه مطلب د هغو خلکو دی چې هغوي وايي چې لاسونه ب
او پوسره برابروئ او په دې طريقه امام شافعي رحمه الله د احاديثو په مابين ک
تطبيق راوستلو او ټولو خلکو خوښ کړ.

**د لاسونو د اوچتولو په وخت کې د لاسونو د ورغوو قبلې ته مخامخ کول:**

**عَنْ اِبْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اسْتَفْتَحَ أَحَدُكُمُ (الصَّلوٰ فَلْيَرْفَعْ يَدَيْهِ وَلْيَسْتَقْبِلْ بِبَاطِنِهِمَا الْقِبْلَةَ فَإِنَّ اللهَ أَمَامَهُ(۱)**

عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما څخه روايت دی چې: رسول الله صلى الله عليه وس
فرمايلي دي چې کله په تاسو کې لمونځ شروع کوي، نو دواړه لاسونه دې پورته کوي ا
ورغوي دې قبلې ته مخامخ کوي، ځکه چې الله تعالی د هغه مخې ته دی.

**ښی لاس دچپ (ګس) لاس د ورغوي په شا، په مړوند او په ليچې کېښودل:**

**اَنَّ وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ الْحَضْرَمِيَّ رضي الله عنه أَخْبَرَهُ، قَالَ: قُلْتُ: لَأَنْظُرَنَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْ وَسَلَّمَ كَيْفَ يُصَلِّي، فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ حِينَ قَامَ، فَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى حَاذَتَا أُذُنَيْهِ، ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْ عَلَى ظَهْرِ كَفِّهِ الْيُسْرَى، وَالرُّسْغِ، وَالسَّاعِدِ(۲)**

وايل بن حجر رضي الله عنه فرمايي چې: ما قصد وکړ چې زه به ګورم چې رسول ال
ﷺ څرنګه مونځ کوي؟ نو ما چې د رسول الله ﷺ طرفته وکتل کله چې ودريد
نو الله اکبر يې وويلو او لاسونه يې تر غوږونو پورې اوچت کړل بيا يې خپل ښ
لاس د چپ لاس د ورغوي په شا او په مړوند او په مټ باندې کېښودلو.

همدا سې الفاظ په صحيح ابن خزيمه کې هم دي [**باب وضع بطن الكف اليمن على الكف اليسرى والرسغ والساعد جميعاً حديث نمبر ۴۶۴**].

---

۱-(المعجم الأوسط للطبراني، ج٦صـ ٩، باب رفع اليدين فى الصلوة).
۲- [صحيح ابن حبان حديث نمبر ۱۸۶۰].

په دې حدیث د عمل طریقه داده چې د ښي لاس ورغوی دې د چپ (ګس) لاس د ورغوي په شا کېښودلی شي او دوه ګوتې دې د مړوند څخه تاو شي او درې ګوتې دې سیده په لیچي کېښودلی شي.

**د نارینه وو لپاره دنوم څخه لاندې لاسونه کېښودل:**

(١) ذَكَرَ الْأَثْرَمُ رحمه الله علیه قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ عَنْ عَاصِمٍ الْجَحْدَرِيِّ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ صُهْبَانَ سَمِعَ عَلِيًّا رضي الله عنه يَقُولُ فِي قَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ قَالَ وَضْعُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى تَحْتَ السُّرَّةِ. (١)

حضرت عقبه بن صهبان رحمه الله فرمائي چې ما د حضرت علي رضی الله عنه څخه اورېدلي دي د (فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ) په تشریح کې، چې ښي لاس په چپ لاس د نوم څخه لاندې کیږدئ.

(٢) عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رضي الله عنه قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ يَمِينَهُ عَلَى شِمَالِهِ تَحْتَ السُّرَّةِ(٢)

وائل بن حجر رضی الله عنه فرمائي چې ما نبی علیه السلام ولیدلو چې خپل ښي لاس یې په چپ لاس باندې د نوم څخه لاندې کېښودلو.

(٣) وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ زَيْدٍ السُّوَائِيِّ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ: «مِنْ سُنَّةِ الصَّلَاةِ وَضْعُ الْأَيْدِي عَلَى الْأَيْدِي تَحْتَ السُّرَرِ». (٣)

---

٢- (استاذالبخاری مصنف ابن ابي شیبه . ادارة القرآن دارالعلوم الاسلامیه کراچی حدیث نمبر٣٩٠٩، باب نمبر ١٦٧] (معارف السنن ،ج ٢ص ٤٣٧) ( اعلاء السنن ،ج ٢ص ١٤٣)باب وضع الیدین . ( اثارالسنن ،ج ١ص ٧٧ ) باب وضع الیدین تحت السرة) بذل المجهود ج٢ص ٢٣].

٣-(مصنف ابن ابي شیبه الشافعي استاذالبخاري ، ج ١ ص٣٩١) وضع الیمین علي الشمال رقم ١٣.

د حضرت علی ﷺ څخه روایت دی چې د لمانځه سنت دا دي چې لاس د نوم څخه لاندې کیږدئ.

(۴) وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «مِنَ السُّنَّةِ وَضْعُ الْكَفِّ عَلَى الْكَفِّ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ» (۱)

بې شکه چې یو ورغوي په بل ورغوی باندې د نوم څخه لاندې کېښودل د سنتو څخه دي.

(۵) وَعَنْ أَنَسٍ ﷺ قَالَ: ثَلَاثٌ مِنْ أَخْلَاقِ النُّبُوَّةِ: تَعْجِيلُ الْإِفْطَارِ وَتَأْخِيرُ السَّحُورِ وَوَضْعُ الْيَدِ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ. (۲)

دا حدیث په مسند زید باب تعجیل الافطار کې د سند سره ذکر شوی دی.

حضرت انس ﷺ فرمائي چې درې شیان د ټولو پیغمبرانو اخلاق دي، په روژه ماتې کې مخکې والې کول په پیشمني کې وروسته والې کول، او ښي لاس باندې په چپ لاس کېښودل د نوم څخه لاندې.

(۶) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: أَخْذُ الْأَكُفِّ عَلَى الْأَكُفِّ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ (۳)

حضرت ابوهریرة ﷺ فرمائي چې یو ورغوی په بل ورغوي کېښودل په لمانځه کې د نوم څخه لاندې دي.

۱-(ابوداودنسخه ابن اعرابي ص ۷۶، حدیث نمبر ۶۴۵]. (اعلاء السنن، ص ۱۶۶(معارف السنن، ج ۲ص ۴۴۱/بذل المجهود ج۲ ص۲۳).

۲-[بذل المجهود ج۲/ ص۲۴، باب وضع الیمنی علی الیسری في الصلوة]. (الجوهرالنقی علی السنن الکبری للبیهقی. ج ۲،ص ۳۱ _ ۳۲) ابن حزم، ج ۴ ص ۱۱۳)

۳- الجوهرالنقي، باب وضع الیدین علی الصدر) [والبیهقي حدیث نمبر: ۲۴۳۶، باب وضع الیدین علی الصدر في الصلوة من السنة].

(۷) وَبِهِ قَالَ حَدَّثنا مُوسَى بْنُ هَارُونَ، قَالَ: ثنا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، قَالَ: ثنا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَيَّارٍ أَبِي الْحَكَمِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: «مِنَ السُّنَّةِ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى تَحْتَ السُّرَّةِ فِي الصَّلَاةِ» وَبِهِ قَالَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَإِسْحَاقُ رَحِمَهُمَا اللهُ، وَقَالَ إِسْحَاقُ رحمة الله عليه: تَحْتَ السُّرَّةِ أَقْوٰى فِي الْحَدِيثِ، وَأَقْرَبُ إِلَى التَّوَاضُعِ... الخ(۱)

ابو هريرة رضي الله عنه فرمايي چې: سنت طريقه داده چې لاسونه يو دبل د پاسه د نوم ښخه لاندې كيدى، او همدا دسفيان ثوري او ادسحاق مذهب هم دى، او اسحاق فرمايي چې: د نوم ښخه د لاندې كيښودلو احاديث قوي دي او دا طريقه عاجزى ته ډېره نژدې ده.

(۸) وبِهِ قَالَ: حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ أَبِي يُوسُفَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ، عَنْ حَمَّادٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُمُ اللهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَعْتَمِدُ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى عَلٰى يَدِهِ الْيُسْرٰى فِي الصَّلَاةِ، يَتَوَاضَعُ بِذٰلِكَ لِلّٰهِ تَعَالٰى»(۲)

يعنې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د تواضع لپاره ښى لاس په چپ لاس باندې كيښودلو. او پدې كې شک نشته چې تواضع په تحت السرة كې ده لكه څرنګه چې د ابراهيم نخعي رحمه الله همدا مذهب وو لكه راتلونكى روايت وګوره.

(۹) وبِهِ قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ رَبِيعٍ، عَنْ أَبِي مَعْشَرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ رَحِمَهُمُ اللهُ قَالَ: «يَضَعُ يَمِينَهُ عَلٰى شِمَالِهِ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ»(۳)

---

۱-[الأوسط لابن المنذر تحت حديث رقم ۱۲٤۳].

۲-[كتاب الآثار لأبي يوسف رحمه الله رواية نمبر: ۳۳۲].

۳- [ابن ابى شيبه: باب وضع اليمين علي الشمال].

ابراهيم نخعي رحمه الله فرمائي چې ږدئ، به ښى لاس په چپ لاس باندې د نوم ښخه لاندې، ددې راوي ربيع صدوق دى. [الذهبي، ج١ص ٣٤٧ رقم٢٠٩٦] والجرح والتعديل لابن أبي حاتم ج٣ / ص ٤٦٤] و سير اعلام النبلاء ج١٣/ ص٣٢٨].

(١٠) وَبِهِ قَالَ: أَخْبَرَنَا الرَّبِيعُ بْنُ صُبَيْحٍ، عَنْ أَبِي مَعْشَرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ رَحِمَهُمُ اللَّهُ أَنَّهُ كَانَ يَضَعُ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى تَحْتَ السُّرَّةِ، قَالَ مُحَمَّدٌ رَحْمَةُ اللَّهِ عَلَيْهِ: وَبِهِ نَأْخُذُ، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. (١)

يعنې امام نخعي رحمه الله به ښى لاس په چپ لاس د نوم ښخه لاندې كيښودلو او امام محمد فرمايي چې په همدې مونږ عمل كوو او همدا قول د امام صاحب دى.

(١١) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ قَالَ: أَخْبَرَنَا حَجَّاجُ بْنُ حَسَّانَ قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا مِجْلَزٍ رَحِمَهُمُ اللَّهُ أَوْ سَأَلْتُهُ قَالَ: قُلْتُ: كَيْفَ يَصْنَعُ؟ قَالَ: «يَضَعُ بَاطِنَ كَفِّ يَمِينِهِ عَلَى ظَاهِرِ كَفِّ شِمَالِهِ وَيَجْعَلُهَا أَسْفَلَ مِنَ السُّرَّةِ». (٢)

يعنې ږدې به باطن د ښي لاس په ظاهر د چپ لاس، او دواړه لاسونه به د نوم ښخه لاندې كړي، په ټولو صحابه وو او تابعينو كې ديو ښخه هم نده ثابته چې په سينه باندې يې لاسونه ايښي وي، او تر قيامته به يې څوك ثابت نكړي بلكې په فتاوى علماء حديث، ج ٣ ص ٩٣/ كې په دې خبره اعتراف شوى دى چې صحابه وو رضي الله عنهم او تابعينو داسې عمل ندى كړى.

---

١-[كتاب الآثار ص ٢٤ حديث نمبر: ١٢١].

٢-(ابن ابي شيبه ،ج ١ص ٣٩٠/٣٩١ وضع اليمين على الشمال).

## د نارينه وو لپاره په سينه باندې لاسونه کېښودل دمسلمانانو په مذهبونو کې نشته:

په لمانځه کې په سينه باندې لاسونه ايښودل په ايمه يې اربعه وو کې د هيچا مسلک هم ندی. (١) وعبارته هكذا قال الترمذي لم يأخذ أحد من الأربعة بالوضع على الصدر... الخ أو صاحب د بذل الجهود فرمايي چې:

فانحصر مذاهب المسلمين في ثلاثة أحدها الوضع تحت السرة، وثانيها فوق السرة تحت الصدر وثالثها الارسال، بل انحصر الوضع في هيئتين، تحت الصدر وتحت السرة ولم يوجد على ماقال الشوكاني مذهب من مذاهب المسلمين أن يكون الوضع على الصدر فقول الوضع على الصدر قول خارج من مذاهب المسلمين وخارق لاجماعهم المركب. (٢)

باب وضع اليمين على اليسرى في الصلوة. يعنې د مسلمانانو پدې مسئله کې درې مذهبه دي اول د نوم څخه لاندې کېښودل. دوهم د سينې څخه لاندې کيښودل، او دريم زړوند نيول، بلکې څوک چې د لاسونو په کيښودلو قايل دي د هغوی څخه صرف دوه قوله رانقل شوي دي، يو دا چې د نوم څخه به يې لاندې ږدي، او دوهم دا چې د سينې څخه به يې لاندې ږدي او په سينه باندې د لاسونو کيښودل د هيڅ مسلمان مذهب هم ندی نو په سينه باندې د لاسونو کيښودل د ټولو مسلمانانو د مذهبونو څخه ځان ايستل دي او د مسلمانانو د مرکبې اجماع څخه مخالفت دی.

قلت ان رواية على الصدر عن الشافعي رواية النادرة كما سيأتي في عبارة السنن].

---

١[معارف السنن باب ماجاء في وضع اليمين في الصلوة ج ٢/ ص ٤٣٦.

٢-(بذل المجهود ج٢/ ص٢٥)

امام نووي فرمايي چې د امام شافعي رحمه الله مذهب دادی چې لاسونه
د سينې ځخه لاندې ږدئ، او د امام ابو حنيفه رحمه الله په مذهب به لاسونه د نوم ځخه
لاندې ږدئ، او د امام احمد رحمة الله علیه ځخه درې روايته دي، يو د امام ابو حنيفه رحمة الله علیه
په شان، يو د امام شافعي رحمه الله په شان، او دريم داچې اختيار دی، خو مختار
روايت يې دادی چې: د نوم ځخه به يې لاندې کيږدئ. او د امام مالک رحمة الله علیه په نيز
ارسال دی.(۱)

امام ترمذی رحمه الله چې د دې اختلافاتو ذکر کوي نو هغوئ هم په سينه
باندې لاسونه کيښودل هيڅ امام ته ندی منسوب کړی هغه فرمايي چې:

(وَالعَمَلُ عَلٰى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
وَالتَّابِعِينَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، يَرَوْنَ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ يَمِينَهُ عَلٰى شِمَالِهِ فِي الصَّلَاةِ
وَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنْ يَضَعَهُمَا فَوْقَ السُّرَّةِ. وَرَأَى بَعْضُهُمْ: أَنْ يَضَعَهُمَا تَحْتَ السُّرَّةِ، وَكُلُّ ذٰلِكَ
وَاسِعٌ عِنْدَهُمْ.(۲)

**د زنانه وو لپاره په سينه باندې دلاسونو کېښودل:**

مولانا عبد الحی لکهنوی فرمائي:

امافي حق النساءفاتفقواعلي ان السنة لهن وضع اليدين علي الصدر لانهاما استرها.(۳)

د علماؤ په دې اتفاق دی چې د ښځو په باره کې سنت طريقه په سينه باندې
دلاسونو کيښودل دي په يو مقطوع حديث کې راځي چې:

۱-(نووی الشافعی شرح مسلم ،ج ۱ص ۱۷۳) باب وضع يده اليمني علي اليسري ...الخ)
۲-(ترمذی ج۱ ص ۵۹ باب ماجاء في وضع اليمين علي الشمال)
۳-(السعايه ،جد ۳ص ۱۵۶)

(عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ قَالَ: تَجْتَمِعُ الْمَرْأَةُ إِذَا رَكَعَتْ تَرْفَعُ يَدَيْهَا إِلَى بَطْنِهَا، وَتَجْتَمِعُ مَا اسْتَطَاعَتْ). (۱)

ښځه دې په قيام کې تر خپل طاقت پورې لاسونه راټول نيسي او چې لاسونه پورې راټول و نيسي نو په سينه راځي.

**ثناء(سبحانک اللهم) ويل:**

(۱) عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ قَالَ: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَآ إِلٰـهَ غَيْرُكَ. (۲)

حضرت ابو سعيد رضی الله عنه فرمائی چې رسول الله ﷺ به چې کله مونځ شروع کړو نو سبحانک أللهم به ئې (تر اخره) لوستله.

(۲) عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ قَالَ: «سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَآ إِلٰـهَ غَيْرُكَ» (۳)

حضرت ابو سعيد رضی الله عنه فرمائی چې رسول الله ﷺ به چې کله مونځ شروع کړو نو سبحانک اللهم الخ به ئې لوستله.

(۳) عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ قَالَ: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ. (٤)

۱-(مصنف عبدالرزاق، ج ۳ صـ ٤٩، باب تكبير المرءة بيديها وقيام المرءة وركوعها وسجودها.

۲-(نسائي: ج ۱/ص ۱٤۳)

۳-(نسائي: ج ۱/ص ۱٤۳)

٤-(مستدرك حاكم: ج ۱/ص ۲۳۵، ابوداود: ج ۲/ص ۱۲۰)

حضرت عایشه رضي الله عنها فرمائی چی رسول الله ﷺ به چی کله مونځ شروع کولو نو سبحنک اللهم الخ به یې لوستله.

(٤) عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ إِذَا كَبَّرَ الصَّلٰوةَ، قَالَ: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَآ إِلٰهَ غَيْرُكَ (١)

حضرت عمر رضي الله عنه به چی الله اکبر وویلو، نو سبحنک اللهم الخ به یې لوستلو.

(٥) عَنْ عَبْدَةَ رحمة الله عليه، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ، كَانَ يَجْهَرُ بِهٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ يَقُولُ: «سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، تَبَارَكَ اسْمُكَ، وَتَعَالٰى جَدُّكَ، وَلَآ إِلٰهَ غَيْرُكَ.(٢)

حضرت عمر رضي الله عنه به په اوچت اواز سبحانک اللهم الخ لوستله.

(٦) عَنْ أَبِي وَائِلٍ رحمة الله عليه قَالَ: كَانَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ يَقُوْلُ: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ الخ.(٣)

حضرت ابو وائل رضي الله عنه فرمائی چی حضرت عثمان رضي الله عنه به چی کله مونځ شروع کړو نو سبحانک اللهم به ئی لوستله.

**ثناء (سبحانک اللهم په پټه(خفیه) لوستل:**

عن ابراهيم قال خمس يخفيهن الامام سبحنك اللهم وبحمدك والتعوذ وبسم الله الرحمن الرحيم وامين وربنالك الحمد.(٤)

د حضرت ابراهیم نخعی رضي الله عنه څخه روایت دی چې امام به پنځه شیان پټ وائي:

(۱) سبحنك اللهم الخ. (۲) اعوذ بالله الخ. (۳) بسم الله الخ. (۴) امين). (۵) ربنالك الحمد.

---

١-(داقطنی: ج ١/ص٢٩٩)

٢-(مسلم: ج ١/ص١٧٢)

٣-(دارقطنی: ج ١/ص٣٠٢)

٤- رواه عبدالرزاق/ رقم:٢٥٩٧ واسناده صحيح اثارالسنن، ص:١٠٧ باب ترک الجهر بالتامين.

عن ابراهيم قال اربع يخافت بهن الامام سبحانك اللّٰه وبحمدك، والتعوذ من الشيطن، وبسم الله الرحمن الرحيم، وآمين.(۱)

ابراهيم نخعي رحمة الله عليه فرمايي چې امام به دا څلور شيان په پټه وايي: ۱- سبحانک اللهم ۲- اعوذ بالله ۳- او آمين.

**اعوذبالله من الشيطن الرجيم لوستل:**

۱- الله تعالى فرمايلي دي چې:

**فاذاقرأت القرآن فاستعذ بالله من الشيطن الرجيم (الاية)**

نو کله چې دې د قرآن د لوستلو اراده وکړه، نو د شيطان رټل شوي څخه الله تعالى ته پناه ونيسيه (اعوذبالله من الشيطن الرجيم) ووايه.

**۲- عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيْ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ قَبْلَ الْقِرَائَةِ أَعُوْذُبِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ (۲)**

د ابي سعيد خدري رضى الله عنه څخه روايت دى چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم به د قراءة څخه مخکې اعوذ بالله من الشيطن الرجيم لوستله.

**بسم الله الرحمن الرحيم لوستل:**

**عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتِحُ صَلَاتَهُ بِبِسْمِ اللهَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ (۳)**

عبدالله ابن عباس رضى الله عنهما فرمايلي دي چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم به دلمانځه په شروع کې بسم الله الرحمن الرحيم لوستله.

**اعوذبالله او بسم الله پټ (خفيه) لوستل:**

---

۱- [کتاب الآثار للامام محمد رقم ۸۳ کتاب الآثار لابی یوسف رقم ۱۰۶]

۲-(مصنف عبدالرزاق، ج۲ص۵۶، باب متى يستعيذ)

۳-(جامع الترمذى، ج۱ص۵۷، باب من رأى الجهر ببسم الله)

عن ابراهيم قال اربع يخافت بهن الامام سبحانك اللـه وبحمدك، والتعوذ من الشيطن، وبسم الله الرحمن الرحيم، وآمين.(١)

ابراهيم نخعي رحمة الله عليه فرمايي چې امام به دا څلور شيان په پټه وايي : ١- سبحانک الله اللهم ٢- اعوذ بالله ٣- او آمين.

**اعوذبالله من الشيطن الرجيم لوستل :**

١- الله تعالى فرمايلي دي چې:

فاذاقرأت القرآن فاستعذ بالله من الشيطن الرجيم (الاية)

نو کله چې دې د قرآن د لوستلو اراده وکړه، نو د شيطان رټل شوي څخه الله تعالى ته پناه ونيسيه (اعوذبالله من الشيطن الرجيم) ووايه.

٢-عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيْ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ قَبْلَ الْقِرَائَةِ أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ (٢)

د ابي سعيد خدري رضى الله عنه څخه روايت دی چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم به د قراءة څخه مخکې اعوذ بالله من الشيطن الرجيم لوستله.

**بسم الله الرحمن الرحيم لوستل:**

عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتَحُ صَلَاتَهُ بِبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ (٣)

عبدالله ابن عباس رضى الله عنهما فرمايلي دي چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم به د لمانځه په شروع کې بسم الله الرحمن الرحيم لوستله.

**اعوذبالله او بسم الله پټ (خفيه) لوستل:**

---

١- [كتاب الآثار للامام محمد رقم ٨٣ كتاب الآثار لابى يوسف رقم ١٠٦]

٢-(مصنف عبدالرزاق، ج٢ص٥٦، باب متى يستعيذ)

٣-(جامع الترمذى، ج١ص٥٧، باب من رأى الجهر ببسم الله)

عَنْ أَنَسٍ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ فَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا مِنْهُمْ يَقْرَأُ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ.(۱)

حضرت انس رضی الله عنه فرمايلي دي چې: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم، حضرت ابوبکرصديق، حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنهم پسې لمونځ کړی دی او په دوي کې ما دهيچا څخه نه دي اوريدلي چې بسم الله الرحمن الرحيم يې (په زوره) (جهر) لوستلی وي.

أن عمربن الخطاب قال: يخفی الامام أربعاً: التعوذ، وبسم الله الرحمن الرحيم، وآمين، وربنالك الحمد.(۲)

حضرت عمر رضی الله عنه فرمايي چې امام به دا مذکور څلور شيان په پټه وايي ۱- اعوذ بالله ۲- بسم الله ۳- آمين ۴- ربنا لک الحمد

عن ابراهيم قال: قال عمر: أَرْبَعٌ يُخْفِيهِنَّ عَنِ الْإِمَامِ: أَلتَّعَوُّذُ، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، وآمين، واللهم رَبَّنَالَكَ الْحَمْدُ.(۳)

حضرت عمر رضی الله عنه فرمايي چې امام به دا څلور شيان په پټه ووايي ۱- اعوذ بالله من الشيطن الرجيم ۲- بسم الله الرحمن الرحيم ۳- آمين ۴- او ربنا لک الحمد.

## د امام او منفرد (يواځې لمونځ کونکي) لپاره د الحمدلله او ورپسې سورة لوستل

په صحيحينو کې مرفوع روايت دی چې:

أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ لَاصَلٰوةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَءْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَصَاعِداً، قَالَ سُفْيَانُ لِمَنْ يُصَلِّيْ وَحْدَهُ(۱)

---

۱-(۵۰/۳۹۹)

۲- [محلی ابن حزم ج۳/ ص۱۴۸ طبع دار الاحياء التراث العربي بيروت سنة ۱۴۲۲ھ].

۳-[رواه ابن جرير] [کنز العمال ج۴/ ص۲۴۹ کتاب الصلوة].

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې: دهغه چا لمونځ نه کيږي چې د الحمدلله سره سورة ونه لولي، سفيان ابن عيينه رحمه الله فرمايلي دي چې دا د (منفرد) يوائې لمونځ کونکي لپاره دی.

**د قرائت په وخت کې د مقتديانو چپ اوسيدل:**

(۱) الله ﷻ فرمائي: وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ (۲)

اوکله چې ولوستلې شي قران، نو غوږ کيږدئ تاسې هغه ته او چُپ اوسئ له پاره ددې چې رحم درباندې وشي.

د جمهور سلفو او خلفو اتفاقي فيصله ده چې په دې ايت کريمه کې د قراءة خلف الامام مسئله پوره واضحه شوې ده، او په دې باره کې يې صاف او ناطق حکم صادر کړې دی، يعنې د امام او مقتدي کارونه او وظيفې يې جدا جدا معينې کړي دي.

**دامام وظيفه**: (قراءت کول دي) او دمقتدي وظيفه: (چپ درېدل او توجه کول دي.

امام بخاري رحمه الله د لا تحرک به لسانک معنی داسې رانقلوي چې: فاستمع له وانصت ج ۱ صـ ۳ـ نو شونډې خوزول د استماع او د انصات سره منافي دي، همدارنګه امام بيهقي فرمايي چې لافرق بين السکوت والانصات

۱- [بخاری ج ۱ص ۱۰٤/ مسلم ج ۱ص ۱٦۹، ابوداود، ج۱ صـ ۱۱۹].

۲-[پ ۹ سورة اعراف].

(١)حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چې عبد الله بن عباس رضی الله عنه د قران كر
بهترين مفسر او شارح دی.

دو مره لوی مفسر ددې ايت كريمه په باره كې داسې فرمائي چې:

(٢) ان رسول الله ﷺ قرء فی الصلوة فقرأ اصحابه ورائه فخلطوا علي
فنزل: وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَ اَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ)فهذه مكتو
ثم قال ابن عباس رضی الله عنهما: وان كنا لانستمع لمن يقرأ انا اذا لاجفى من الحمير

رسول الله صلى الله عليه وسلم په لمانځه كې قراءت كو ... حابه وو
وروستې قراءت كولو، نو په رسول الله صلى الله عليه وسلم قراءت گډوډ شو نو الله
تعالى دا ايت نازل كړو چې (وَ اِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا ... وَ اَنْصِتُوْا لَعَلَّكُ
تُرْحَمُوْنَ)بيا عبد الله بن عباس رضى الله عنه وفرمايل چې كه مونږ قرآن ته غو
كېنږدو نو مونږ به د خره څخه هم ډير ظالمان يو اسناده حسن(٢)

(٣) صلى ابن مسعود رضی الله عنه فسمع ناسا يقرءون مع الامام قال اما ان لكم ا
تفهموا اما آن لكم ان تعقلوا! (وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَه وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُ
تُرْحَمُوْنَ)(٣)

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه يوه ورځ لمونځ كولو او يو څو كسانو په اما
پسې قرائت لوستلو، كله چې عبد الله بن مسعود رضی الله عنه د دوی قرائ
واوريدو (نو د لمانځه څخه وروسته يې) ورته وفرمايل چې ايا په تاسو هغه وخ

---

١- (كتاب القراءت صـ ٨٤)

٢- (كتاب القراءت للبيهقى رقم ٢٢٣)

٣- [تفسير ابن جرير، ج ٩ ص ١٠٣].

نه دی راغلی چې د پوهې او د عقل څخه کار واخلئ! کله چې قران لوستلی شي نو تاسې هغه ته غوږ کیږدئ او چپ اوسئ!.

(٤) عن محمدبن كعب القرضي قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا قرء فى الصلوة أجابه من ورائه، اذا قال بسم الله الرحمن الرحيم قالوا مثل مايقول حتى تنقضى الفاتحة والسورة فلبث ماشاء الله ان يلبث ثم نزلت واذا قرء القرآن فاستمعوا له وانصتوا لعلكم ترحمون فقرأ وانصتوا.([1])

صحابه وو به د نبي كريم صلى الله عليه وسلم پسې سورة فاتحه او ورپسې سورة لوستل بيا دا ايت نازل شو چې واذا قرء القرآن فاستمعوا له، نو بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم قراءت كولو او صحابه چپ وو.

(٥) عَنْ أَبِي مُوسَى الاشعري رضي الله عنه قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَنَا فَبَيَّنَ لَنَا سُنَّتَنَا، وَعَلَّمَنَا صَلَاتَنَا، فَقَالَ: "إِذَا صَلَّيْتُمْ فَأَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ، ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَحَدُكُمْ فَإِذَا كَبَّرَ الْإِمَامُ فَكَبِّرُوا، وَإِذَا قَرَأَ {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة:٧] فَقُولُوا: آمِينَ.([2])

د حضرت ابی موسی اشعری رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ مونږ (صحابه كرامو) ته خطاب وفرمايلو، نو مونږته يې د سنتو تعليم راكړو، او د لمانځه داداء كولو طريقه يې راته وښوده، نو وی فرمايل چې اول (د لمانځه د شروع كولو څخه مخكې) صفونه برابر كړئ، بيا دې يو شخص امامتي دركړي، نو كله چې هغه امام تكبير ووائي نو تاسو تكبير ووائي، او كله چې امام قراءت

١-(اسناده صحيح على شرط مسلم، تفسير ابى بن حام الرازى ج ٤ص صـ ٢٥٩، رقم ٩٤٩٣)
٢-(صحيح مسلم ص ١٧٤ ج ١)

کولو، نو تاسو چپ اوسئ، او چې کله امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووائي نو تاسو امين ووائې.

(۶) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ رضي الله عنه: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا، وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا، وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا: اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ(۱)

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې امام د دې لپاره جوړ شوی دی چې د ده پسې اقتداء وکړې شي، پس کله چې هغه (امام) الله اکبر ووائي نو تاسو الله اکبر ووائي، او کله چې هغه قراءة کوي، نو تاسو چپ و دریږئ، او کله چې هغه سمع الله لمن حمده ووائي نو تاسو ربنا لک الحمد ووائي.

په دې حديث کې هم رسول الله ﷺ په واضحه طريقه بيان کړی دی، چې د امام وظيفه قراءة کول دي. او د مقتدی وظيفه چپ و دريدل دي.

(۷) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنْ صَلَاةٍ جَهَرَ فِيهَا بِالْقِرَاءَةِ فَقَالَ: «هَلْ قَرَأَ مَعِي أَحَدٌ مِنْكُمْ آنِفًا؟» قَالَ رَجُلٌ: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ: «إِنِّي أَقُولُ مَا لِي أُنَازَعُ الْقُرْآنَ» قَالَ: فَانْتَهَى النَّاسُ عَنِ الْقِرَاءَةِ فِيمَا جَهَرَ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقِرَاءَةِ مِنَ الصَّلَاةِ حِينَ سَمِعُوا ذَلِكَ من رسول الله ﷺ(۲)

---

۱- ( نسائی شريف جلد ۱ ص ۱۰۷ _ ابن ماجه شريف ص ۶۱ ) (طحاوی شريف ص ۱۲۸ مشكوة شريف ص ۸۱ ) ابوداود، ج۱ ص: ۸۹، مسند احمد، ج۱٤ ص: ٤١٥، جزء القراءة، ص: ۵۶، كتاب القراءة، ص: ۹۱، مسلم، ج۱ ص: ۱۷٤ )

۲-(ترمذی، ج ۱ ص ۶۵ ) باب ماجاء في ترک القراءة خلف الامام اذا جهر بالقراءة).

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دی چې نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ديو جهری لمونځ څخه فارغ شونو پوښتنه يې وکړه چې ايا په تاسو کې چازما پسې قراءة کړی دی؟ (سره ددينه چې ټول صحابه موجود وو) په دوی کې صرف يو سړي وويل چې هويارسول الله ما ستاسو پسې قراءت کړی دی.

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې ما په زړه کې ويل چې ولې زما سره د قرآن په قرائت کې جګړه روانه ده؟ دا منازعت او کشمکش ولې کيږي؟ ددی ارشاد څخه وروسته صحابه کرام رضوان الله عليهم اجمعين منعه شول د قراءة څخه د رسول الله ﷺ سره په جهری لمونځونو کې، کله يې چې دا خبره د رسول الله ﷺ څخه واوريدله (انازع ای اداخل فی وأشارك وأغالب عليه) دبل چا په حق کې مخاصمه کول، دا د سهار د لمانځه واقعه وه. (۱)

چې تمام صحابه کرام په کې موجود وو، ليکن د نبی ﷺ پسې قرائت کونکې صرف يو سړی وو، چې هغه هم ددې قراءت په وجه د رسول الله ﷺ له طرفه تهديد شو.

(۸) عَنْ جَابِرِ بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ كَانَ لَهُ إِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الْإِمَامِ لَهُ قِرَاءَةٌ». (۲)

د حضرت جابر بن عبد الله ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې هغه څوک چې د امام په اقتداء کې لمونځ کوي نو دده لپاره د امام قرءة کافي دی.

---

۱-( سنن كبرى للبهيقى ج ۲ص ۱۵۷ سنن ابى داود، ج ۱ص ۱۳۰ )

۲-(اللفظ لابن ماجه ص ۶۱ ) واخرجه محمد في الموطاص ۹۸ _ ۹۹ )

يعني كوم سړى چې د امام پسې لمونځ كوي نو دده لپاره د مستقل قرائت ضرورت نشته، بلكې د امام قرائت د مقتدي قرائت دى، او د امام لوستل د مقتدي لوستل دي، په دې حديث شريف كې هم د سري او د جهري قيد نشته، لهذا احاديث كريمه د خپل عموم په بناء باندې هر لمانځه ته شامل دى.

(۹) په ابن ماجه (ص: ۸۸، طحاوى ج۱\ص: ۲۳۵ مشكل الاثار ج۱۲\ص: ۲۷، طبقات ابن سعد ج۳\ص: ۱۳۰ نصب الرايه ج۲\ص: ۵۱، درايه ص: ۱۰۰، فتح البارى ج۲ص: ۱۴۵) وغيره كتابونو كې د حضرت عبد الله بن عباس ﷺ يو اوږد حديث دى، د هغې خلاصه داده چې كله رسول الله ﷺ په مرض الوفات باندې مبتلى شو نو د امامتې فرايض يې حضرت ابوبكر صديق ﷺ ته حواله كړل ابوبكر صديق ﷺ امامتي كوله.

يو ورځ د رسول الله ﷺ په مرض كې يو څه تخفيف راغلو، نو رسول الله ﷺ په دوو كسانو باندې لاسونه اچولي وو، او ورو ورو مسجد ته راغى، د رسول الله ﷺ د راتلو څخه مخكې ابوبكر صديق ﷺ لمونځ شروع كړى وو كله يې چې د رسول الله ﷺ راتلل محسوس كړل، نو وروسته كيده، رسول الله ﷺ ورته اشاره وكړه چې پخپل ځاى ودريږه ابوبكر صديق ﷺ د جايئنماز څخه وروسته شو او رسول الله ﷺ په جايئنماز كيناستلو او امامتي يې شروع كړه او ابوبكر صديق ﷺ مكبر شو، د رسول الله ﷺ او ازبه يې په زوره ويلو او وروسته صفونو ته به يې رسولو، راروان الفاظ د توجه قابل دي.

وَأَخَذَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مِنَ الْقِراءةِ مِنْ حيثُ كَانَ بَلَغَ أبوبكر ﷺ

رسول الله ﷺ قراءة د هغه ځایه شروع کړو تر کومه ځایه چې ابوبکر صدیق ﷺ لوستلې وو.(١)

په یو بل روایت کې الفاظ داسې دي چې:( فاستفتح النبي ﷺ من حیث انتهي ابوبکر ﷺ من القرءان) (٢)

پس رسول الله ﷺ قراءة د هغه ځایه شروع کړو، تر کومه ځایه چې ابوبکر صدیق ﷺ لوستلي وو.(٢)

په یو دریم روایت کې الفاظ داسې دي (فاستتم رسول الله ﷺ من حیث انتهي ابوبکر من القرءاة) رسول الله ﷺ د هغه ځای څخه قراءة پوره کړو، په کوم ځای چې ابوبکر صدیق ﷺ اودرولې وو(٢)

د دې حدیث څخه معلومیږي چې د رسول الله ﷺ څخه ټوله سورة فاتحه تیره شوې وه، او یا ترینه د سورة فاتحې اکثره حصه تیره شوی وه، ځکه چې رسول الله ﷺ سخت مریض و، په دوو کسانویې لاسونه اچولې وو، او په قلاره قلاره مسجد ته روان وو، او ابوبکر ﷺ د رسول الله ﷺ د راتللو څخه مخکې لمونځ شروع کړی وو، نو د دې حالاتو څخه صفا معلومیږي چې که سورة فاتحه مکمله نوي لوستل شوې نو اکثره حصه خو به یې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له راتللو نه مخکې ضرور لوستل شوي وه، مګر د دې باوجود د رسول الله ﷺ د لمونځ اعاده ونه

---

١-(ابن ماجه شریف ص ٨٨، مسند احمد ج١|ص :٢٣٢)

٢- سنن الکبری ج٣| ص : ٨١، مسند احمد ج١| ص : ٢٣٢].

٣- (سنن کبری للبیهقی، ج ٣ص ٨١ )

٤-( طحاوی شریف جلداول ص ١٩٨ )

فرمايله، دې لمونځ ته يې بيكاره او باطل ونه ويلو، بلكې صحيح يې وګڼلو نو ك
چيرته دا امام پسې د فاتحې لوستل فرض وى، رسول الله ﷺ به دا المونځ صحيح نه
ګڼلو، بلكې باطل به يې ورته ويلې وو او د دې لمونځ اعاده به يې كړى وه.

دا حديث بالكل صحيح دى، دده ټول راويان ثقه ثبت او حجت دي.(١)

(١٠) سورة فاتحه د دي امت خصوصيت دي. (٢)

الله پاک فرمائي چې:

**ولقد اتينك سبعا من المثاني والقران العظيم**

او رسول عَلَيْهِ السَّلَامُ چې معراج ته تللو نو په بيت المقدس كښې ئي ټولو پيغمبرانو ته امامتي وركړه. او رسول عليه السلام الله انبياؤ ته دا ونه ويل چې تاسو اول سورة فاتحه زده كړئ چې بيائي زما پسي ولولئ، ځكه چې زما په شريعت كښي بغير د لوستلو د فاتحي څخه مونځ نه كيږي .نو محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امام دي. او يو لک څليرشت زره كم او زيات پيغمبران مقتديان دي. او دې مقتديانو پيغمبرانو پخپله فاتحه نه ده لوستلي، بلكه د امام فاتحه ورته كافي وه. د غير مقلدينو د فتوي مطابق د دې يو لک څلېريشت زره څه كم او زياتو پيغمبرانو مونځ نه دي شوي، نو كه د قيامت په ورځ دا پيغمبران راپاڅيږي، او غير مقلدين د مرى څخه ونيسي چې تاسو زمونږ مونځ ته ولې باطل ويلي دي؟ نو لا مذهبه به څه جواب وركوي؟

---

١-( فتح البارى ،ج٥ | ص : ٦٢٩).

٢- نسائي صـــ ١٤٥ ].

## په جماعت باندي مونځ په دري قسمه دي

**اول اعلیٰ :** چي امام هم پيغمبر او مقتديان هم پيغمبران وي لکه د معراج د شپي مونځ چي امام محمد وو او مقتديان زيات او کم يو لک او څليرشت زره پيغمبران وو.

**دوهم متوسط :** چي امام پيغمبر وي او مقتديان امتيان وي. لکه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به چي صحابه کرامو ته امامتي کوله :

**دريم أدنیٰ :** چي امام هم امتي وي او مقتديان هم امتيان وي. لکه زمونږ د زماني د جماعت لمونځونه .نو چي په اعلي مونځ کښي د امام (محمد عَلَيْهِ السَّلَامُ) سورة فاتحه د مقتديانو لپاره کافي ده، نو په متوسط او په ادني مونځ کښي په طريق اولي سره کافي ده.

(١١) د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ د بلي فتوى الفاظ داسي دي چي :
«لَيْتَ الَّذِي يَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ مُلِئَ فُوهُ تُرَابًا»(١)

حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي چي هغه سړی چي د امام پسي الحمد لله لولي کاشکي چي د ده خوله د خاورو څخه ډکه شوي وي.

(١٢) د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ د يو اثر الفاظ داسي دي چي:
«لَأَنْ أَعَضَّ عَلَى جَمْرَةِ العضا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَقْرَأَ خَلْفَ الْإِمَامِ»(٢)

چي په انکار باندي خوله لګول د قرائت خلف الامام څخه راته ډېر خوښ دي.

(١٣) أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، قَالَ: لَيْتَ فِي فَمِ الَّذِي يَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ حَجَرًا(١)

---

١- ( طحاوي شريف ص ١٠٧ )

٢-[ کتاب القرائة / ١١٦ ].

حضرت عمر رضی الله عنه فرمائي چې کاشکې دهغه چا په خوله کې تيږه وي چې د امام پسې قرائت کوي.

(۱۴) عَنْ سَعْدِبن وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: «وَدِدْتُ أَنَّ الَّذِى يَقْرَأُ خَلْفَ الْإِمَامِ فِي فِيهِ جَمْرَةٌ».(٢)

حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه فرمائي چې زما تمنا او خواهش دی چې د امام پسې د قراءة کونکي په خوله کې انګار وي.

(۱۵) عبدالرزاق فرمايي چې:

وَأَخْبَرَنِي مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ، كَانُوا يَنْهَوْنَ عَنِ الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الْإِمَامِ».(٣)

امام عبد الرزاق فرمايي: چې ماته موسی بن عقبه خبر راکړو چې ابو بکر رضی الله عنه عمر رضی الله عنه او عثمان رضی الله عنه به صحابه منعه کول د امام پسې د قرائت څخه.

(١٦) قال الشعبي ادركت سبعين بدريا كلهم يمنعون المقتدي عن القرائة خلف الامام .(٤)

حضرت امام شعبی رَحِمَهُ اللهُ چې لوی تابعي دی فرمائي چې ما اويا (٧٠) بدري صحابه کرام ليدلي دي چې هغوی به خلک د امام شاته د قرائت څخه منعه کول.

---

١-(موطاامام محمد ص٩٨/)

٢-[ موطأ امام محمدص ٩٨/)

٣-[مصنف عبدالرزاق ،ج ٢ص ١٣٩)

٤- (روح المعانى ج٩ ص١٥٢)

## دامام د ولاالضالين ويلو په وخت کې د مقتديانو په پټه (خفيه) آمين لوستل

(١) عنْ وَائِلٍ رضي الله عنه قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا قَرَأَ: {غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة:٧] قَالَ: «آمِينَ» وَأَخْفَى بِهَا صَوْتَهُ، وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى، وَسَلَّمَ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ ".(١)

حضرت وايل بن حجر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته مونځ راکړو، کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم (غير المغضوب عليهم ولا الضالين) ولوستلو نو آمين يې وويل او اوازيې ورباندې پټ کړو، يعنې په پټه يې ولوستلو، او ښي لاس يې په چپ لاس باندې کيښودلو، او ښي او چپ طرف ته يې سلام وګرځولو.

(٢) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا قَالَ الإِمَامُ: {غَيْرِ المَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ} [الفاتحة:٧] فَقُولُوا: آمِينَ، فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ المَلاَئِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ". (٢)

دحضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې کله امام (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ) ووائي نو تاسو امين ووائي (پدغه وقت کې ملايکې هم امين وائي) نو دچا امين چې دملايکو دامين سره موافق شو دده تيرګناهونه به معاف شي.

**دملايکو امين :** د فکر کولو څخه وروسته د ملايکو په امين کې درې شيان رامعلومېږي.

١- مسندأحمد ج٤/٣٣٦ رقم ١٩٠٥٩]ترمذي رقم ٤٨،٢٤ صـ ١٢٧.
٢-(صحيح بخاري، ج١ص ١٠٨ / رقم: ٧٨٢/ ٤٤٧٥)

**اول** دملايكو امين په مونږ کې هيڅ هيڅکله هم ندی اوريدلې، نوظاهره ده چې هغوی په پټه امين وائي.

**دوهم** ملايکی بغير دلوستلو د الحمد لله څخه امين وائي.

**دريم** د دوي د امين لپاره خاص وقت دی، يعنې چې کله امام ولا الضالين ووائي نو دوي امين وائي.

## اهل سنت والجماعت احنافو ته زيری

مونږ اهل سنت والجماعت احناف د الله جل جلاله په فضل او کرم سره د دې زيري پوره پوره مستحق يو، چې د وقت او وصف په هر اعتبار سره زمونږه امين د ملايکو د امين سره موافق دی.

(١) لکه څرنګه چې ملايکې په پټه امين وائي مونږه يې هم په پټه وايو.

(٢) ملايکې بغير دلوستلو د الحمد لله څخه امين وائي، مونږ احناف مقتديان هم بغير دلوستلو د الحمد لله څخه امين وايو.

(٣) ملايکې په هغه وخت کې امين وائي چې کله امام (ولا الضالين) ووائي، يعنی د فاتحې د ختميدلو څخه وروسته امين وائي، مونږ هم په هغه وخت کې امين وايو چې کله د امام فاتحه ختمه شي.

(٣) عَنِ الْحَسَنِ رحمه الله عليه، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رضي الله عنه، "أَنَّهُ كَانَ إِذَا صَلَّى بِهِمْ سَكَتَ سَكْتَتَيْنِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، وَإِذَا قَالَ: {وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ٧] سَكَتَ أَيْضًا هُنَيَّةً"، فَأَنْكَرُوا ذَلِكَ عَلَيْهِ، فَكَتَبَ إِلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، فَكَتَبَ إِلَيْهِمْ أُبَيٌّ أَنَّ الْأَمْرَ كَمَا صَنَعَ سَمُرَةُ. (١)

---

١-(رواه احمد/ مسند احمد / رقم: ٢٠٥٣٠)

حضرت حسن د حضرت سمرة ﷺ څخه روايت کوي چې ده به کله لمونځ کولونو دوه سکتې به يې کولې يوه د لمانځه د شروع په وخت کې او دوهمه به يې د (ولا الضالين) څخه وروسته لږه سکته کوله.

خلکو ددې څخه انکار وکړو، بيا دوی په دې باره کې حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه ته وليکل، نو حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه جواب ورکړو چې بې شکه حکم همداسې دی لکه څرنګه چې حضرت سمرة ﷺ کړی دی.

ددې احاديثو څخه معلوميږي چې رسول الله ﷺ به هميشه دوه سکتې کولې.

**اوله**: داول الله اکبر څخه وروسته يعنې د (سبحنک اللهم) لپاره وه، دا اوږده سکته وه، چې په دې باندې د دواړو صحابه وو کرامو اتفاق وو.

**دوهمه**: د ولا الضالين څخه وروسته دومره باريکه سکته وه چې حضرت عمران بن حصين رضی الله عنه ورته بالکل متوجه نه شو او مختصره سکته د مختصر عمل له پاره وي. او دا وخت د آمين وخت دی، نو چې د آمين په وخت کې سکته وه نو معلوميږی چې د آمين عمل جهراً نه و. همدارنګه په احاديثو کې په ډيرتکرار سره راغلي دي چې د ولا الضالين څخه وروسته امين دی، نو دوهمه سکته د امين لپاره ده، په دې احاديثو کې د سبحنک اللهم او امين دواړو لپاره د سکتې لفظ استعمال شوی دی، او سبحنک اللهم خو اتفاقا په پټه لوستلې شي نو همدارنګې به امين هم په پټه لوستلې شي.

(۴) عَنْ أَبِيْ وَائِلٍ قَالَ كَانَ عَلِيٌّ وَعَبْدُ اللهِ لَا يَجْهَرَانِ بِبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَلَا بِالتَّعَوُّذِ وَلَا بِالتَّامِيْنِ.(١)

١- [رواه الطبرانی فی الكبير/ ج ٤ / ص ٥٦٦ )

دابو وايل رضي الله عنه څخه روايت دی چې خليفه راشد حضرت علی رضي الله عنه او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په لمانځه کې بسم الله الرحمن الرحيم او امين په زوره نه لوستلو.

**د تکبير ويلو سره رکوع کول:**

**عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلٰوةِ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَقُوْمُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِيْنَ يَرْكَعُ (۱)**

د ابي هريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې: رسول الله صلی الله عليه وسلم به چې کله لمونځ ته ودريدلو نو د قيام په حالت کې به يې تکبير ويلو، بيا به چې رکوع ته تللو نو تکبير به يې وويلو.

## د رکوع په حالت کې په ورغوو زنگنونه نيول او گوتې فراخه نيول او څنگلې دا ړخونو څخه جدا ساتل

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چې: رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې:

**يَا بُنَيَّ إِذَا رَكَعْتَ فَضَعْ كَفَّيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ وَفَرِّجْ بَيْنَ أَصَابِعِكَ وَارْفَعْ يَدَيْكَ عَنْ جَنْبَيْكَ (۲)**

ای بچيه! چې کله رکوع کوې نو دواړه ورغوي په زنگنونو کيږده او د گوتو په منځ کې جدا والی راوله او څنگلې دا ړخونو څخه جدا وساته.

---

۱-(صحيح البخاري، ج۱ص۱۰۹، باب التكبير اذا قام من السجود)

۲-( المعجم الاوسط للطبرانی، ج٤ص۱۸۱، رقم ٥٩٩۱)

**په رکوع کې سبحان ربی العظیم ویل:**

عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ يَقُولُ: فِي رُكُوعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ وَفِي سُجُودِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى(١)

د حضرت حذیفه رضی الله عنه څخه روایت دی چې: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره لمونځ وکړو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم په رکوع کې سبحان ربّی العظیم او په سجدو کې سبحان ربّی الاعلی لوستلو.

**د سبحان ربی العظیم درې ځلې لوستل:**

عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ فَقَالَ فِي رُكُوعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ رُكُوعُهُ وَذَالِكَ أَدْنَاهُ(٢)

د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چې: نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې په تاسو کې چې څوک په رکوع کې درې ځلې سبحان ربی العظیم ولولي، نو د هغه رکوع پوره شوه او دا کمه مرتبه د (کاملې) تسبیح ده.

**د امام لپاره سمع الله لمن حمده او د مقتدي لپاره ربنا لک الحمد ویل:**

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا قَالَ الْإِمَامُ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. (٣)

---

١-(سنن ابی داود، ج١صـ ١٣٤، باب ما یقول الرجل فی رکوعه وسجوده)

٢-(جامع الترمذی، ج ١صـ ٦٠، باب ماجاء فی التسبیح فی الرکوع والسجود)

٣-(صحیح مسلم ج١صـ ١٧٦، باب التسمیع والتحمید والتأمین)

د ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې کله امام سمع الله لمن حمده ووايي، نو تاسو اللهم ربنا لک الحمد ووايئ.

## د منفرد (يواځې لمونځ کونکي لپاره دسمع الله لمن حمده او ربنا لک الحمد دواړو ويل

عن ابي هريرة رضی الله عنه كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْكَعُ ثُمَّ يَقُولُ سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ حِينَ يَرْفَعُ صُلْبَهُ مِنْ الرَّكْعَةِ ثُمَّ يَقُولُ وَهُوَ قَائِمٌ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ(١)

د حضرت ابي هريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله لمونځ ته ودريدلو نو په ولاړه به يې تکبير ويلو، بيا به چې رکوع ته تللو نو تکبير به يې وويلو، او چې د رکوع څخه به پورته شو نو سمع الله لمن حمده به يې وويل او بيا به يې په ولاړه ربنا لک الحمد وويلې.

**د رکوع څخه وروسته قومه کول:**

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم يو کس ته لمونځ ښودلو نو ورته وې فرمايل چې:

ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَعْتَدِلَ قَائِماً(٢)

بيا رکوع وکړه تر دې چې په اطمنان سره رکوع وکړې او بيا د رکوع څخه پورته شه تر دې چې ښه په اطمنان سره ودريږې.

---

١- (صحيح البخاری، ج١ص١٠٩، باب التکبير اذا قام من الرکوع)

٢-(صحيح البخاري ج١ص١٠٩، باب امر النبی صلی الله علیه وسلم، الذی لايتم رکوعه بالاعاده)

## رکوع ته د تللو او د رکوع څخه د راپورته کيدلو په وخت کې رفع اليدين نه کول

(۱) الله جل جلاله فرمايي:
قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ(۱)
په تحقيق سره هغه مؤمنان کامياب دي چې په لمانځه کې خشوع کونکي وي.
حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما د (خاشعون) په تشريح کې فرمايي چې:
مخبتون متواضعون لا يلتفتون يمينا ولا شمالا ولا يرفعون ايديهم فى الصلوة.
(تفسير ابن عباس رضى الله عنه ص۲۱۲ طبع مردان ص ۳۵۹ قديمي کتب خانه) ويريدونکي عاجزي کونکي دي او ښي او چپ طرف ته نه ګوري او په لمانځه کې رفع اليدين نه کوي.
(۲) عن جابر رضى الله عنه قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «مَا لِي أَرَاكُمْ رَافِعِي أَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ؟ اسْكُنُوا فِي الصَّلَاةِ».(۲)
د حضرت جابر بن سمرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ زمونږ خواته تشريف راوړو. (په داسې حال کې چې مونږ لمونځ کولو او په لمانځه مو رفع اليدين کول نو رسول الله ﷺ د ډيري ناراضګۍ په حالت وفرمايل) چې زه ولې تاسو د رفع اليدين په کولو باندې ګورم لکه د شريرو اسونو دلکيو په شان؟ د لمانځه په داخل کې ساکن او سيږئ. (يعني رفع اليدين مه کوئ).

---

۱-(سورة المؤمنون ۲-۱.
۲-(صحيح مسلم، ج ۱ ص ۱۸۱

ظاهره دي وي چې دلمانځه په داخل کې چې څومره تېتېدل او جيګېدل دي، ددې ټولو لپاره د رفع اليدين څخه منع راغلې ده، د تکبير تحريمه رفع اليدين دلمانځه د داخل رفع اليدين نه دی بلکې دلمانځه د شروع کولو رفع اليدين دی لدې وجهې دهغې څخه په دې حديث کې منع نه ده راغلې .

(۳) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ: حِينَ يَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ، وَحِينَ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ فَيَنْظُرُ إِلَى الْبَيْتِ، وَحِينَ يَقُومُ عَلَى الصَّفَا، وَحِينَ يَقُومُ عَلَى الْمَرْوَةِ، وَحِينَ يَقِفُ مَعَ النَّاسِ عَشِيَّةَ عَرَفَةَ وَبِجَمْعٍ وَالْمَقَامَيْنِ، وَحِينَ يَرْمِي الْجَمْرَةَ».(١)

د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې رفع اليدين صرف په اوو ځايونو کې کيږي ۱- د لمانځه په شروع کې ۲- د بيت الله شريف د ملا قات په وخت کې ۳- په صفا باندې ۴- په مروه باندې ۵- دعرفات ۶- د مزدلفې د وقوف په وخت کې ۷- او د رمی د جمراتو په وخت کې .

(۴) قَالَ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ: أَلَا أُصَلِّي بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَصَلَّى، فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ.(٢)

حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه يوه ورځ اعلان وکړ چې ايا زه تاسو د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لمونځ خبر نکړم؟ راوي وايي چې پس پاڅيدو او صرف په اول کې يې رفع اليدين وکړل او دوباره يې ونکړل .

---

١-(نصب الرايه ج١ ص ٤٦٩ بمجمع الزوائد رقم ٥٤٦١].

٢-(ترمذی باب ماجاء ان النبی صلى الله عليه وسلم لم يرفع الا فی اول مرة رقم ٢٥٧). باب رفع اليدين عندالركوع، وفی نسخة الشيخ صالح بن عبدالعزيز باب ماجاء أن النبي صلى الله عليه وسلم لم يرفع الا فی اول مرة رقم (٢٥٧).

(۵) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ﷺ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ وَمَعَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَلَمْ يَرْفَعُوا أَيْدِيَهُمْ إِلَّا عِنْدَ التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ". قَالَ إِسْحَاقُ رحمه الله: بِهِ نَأْخُذُ فِي الصَّلَاةِ كُلِّهَا. (۱)

حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی چې ما د رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ او د حضرت عمر فاروق ﷺ پسې لمونځونه کړي دي.

نو دې ټولو حضراتو د لمانځه د شروع څخه وروسته په بل هیڅ ځای کې لاسونه نه دي پورته کړي.

امام اسحق فرمائی چې مونږ په ټولو لمونځونو کې په همدې حدیث عمل کوو او رفع الیدین نه کوو.

(۶) عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ لِافْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يَكُونَ إِبْهَامَاهُ قَرِيبًا مِنْ شَحْمَتَيْ أُذُنَيْهِ، ثُمَّ لَا يَعُودُ (۲)

د حضرت براء بن عازب ﷺ څخه روایت دی، چې رسول الله ﷺ به چې کله د لمانځه د شروع کولو لپاره الله اکبر کړو، نو د غوږونو ترنرمیو پورې به یې لاسونه جیګ کړل او بیا به یې په نور لمونځ کې نه جیګول.

(۷) عَنْ ابن عمر رضی الله عنهما قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا» وَقَالَ بَعْضُهُمْ: حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ وَبَعْدَ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ لَا يَرْفَعُهُمَا، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: وَلَا يَرْفَعُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ، وَالْمَعْنَى وَاحِدٌ. (۳)

---

۱-(دارقطنی، ج ۱ص ۳۹۹/ رقم ۱۱۲۰/۱)

۲-[طحاوي رقم ۱۳۱۳].

۳-[مسند ابی عوانة رقم الحدیث ۱۵۷۲ دارالمعرفه بیروت لبنات] بیانُ رفع الیدین فی افتتاح الصلوة قبل التکبیر بحذاء منکبیه وللرکوع ولرفع رأسه من الرکوع وأنه لایرفع بین السجدتین.

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمايي چې: ما رسول الله صلى الله عليه وسلم وليدلو چې کله يې لمونځ شروع کړو نو لاسونه يې او چت کړل او فرمايلي دي بعضو چې تر او گو رپورې يې او چت کړل، او چې کله يې د رکوع اراده وکړه او د رکوع څخه يې سر را او چتولو نو رفع اليدين يې ونه کړل او بعضو ويلي دي چې د سجدو په مابين کې يې هم لاسونه نه او چتول د (والمعنى واحد) مطلب دا دی چې په رکوع او بين السجدتين دواړو ځايونو کې راويانو د ترک د رفع اليدين روايت کړی دی.

(۸) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ نَرْفَعُ أَيْدِيَنَا فِيْ بَدْءِ الصَّلٰوةِ وَفِيْ دَاخِلِ الصَّلٰوةِ عِنْدَ الرُّكُوْعِ - فَلَمَّا هَاجَرَ إِلَى الْمَدِيْنَةِ الْمُنَوَّرَةِ تَرَكَ رَفْعَ الْيَدَيْنِ فِيْ دَاخِلِ الصَّلٰوةِ عِنْدَ الرُّكُوْعِ وَثَبَتَ عَلٰى رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِيْ بَدْءِ الصَّلٰوةِ(۱)

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی مونږ به د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په مکه مکرمه کې د تکبير تحريمه او رکوع ته د تللو او د رکوع څخه د راجيګيدلو په وخت کې رفع اليدين کول، کله چې نبی عليه السلام مديني منورې ته تشريف راوړو نو د رکوع رفع اليدين يې پريښودل او د تکبير په رفع اليدين باندې ثابت پاتې شو.

**فائده :** په دې صحيح حديث کې د مکې او د مدينې په عمل باندې تصريح ده، يعني رفع اليدين د مکې څخه شروع وو او تر هغه وخته پورې جاري وه څو مره چې د الله جل جلاله اراده وه، بيا په مدينه منوره کې په اخرو ورځو کې متروک او منسوخ شول او د تکبير تحريمه رفع اليدين په خپل حال باندې پاتې شول.

---

۱- توفی اخبار الفقهاء والمحدثين صفحه ۲۱٤ رقم ۳۷۸ واسناده صحيح.

(٩) عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ الصَّلَاةِ ثُمَّ لَا يَعُودُ.(١)

حضرت علی رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به صرف د لمانځه د شروع کولو په وخت کې رفع الیدین کول او بیا به یې نه کول.

فائدة: په بعضو روایاتو کې رکوع ته دتللو او درکوع څخه درا پورته کیدلو په وخت کې د رفع الیدین دکولو ذکر هم راغلی دی، لکن هغه روایات منسوخ اومتروک دي.

**د الله اکبر د ویلو سره سجده کول:**

عن أَبِي هُرَيْرَةَ يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْكَعُ ثُمَّ يَقُولُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ حِينَ يَرْفَعُ صُلْبَهُ مِنَ الرَّكُوعِ ثُمَّ يَقُولُ وَهُوَ قَائِمٌ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَهْوِي سَاجِدًا ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَسْجُدُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ(٢)

ابو هریرة رضی الله عنه فرمایلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله لمانځه ته ودریدلو، نو الله اکبر به یې وویلو، بیا به یې الله اکبر وویلو او رکوع به یې وکړه، بیا به چې د رکوع څخه را وچتیدو نو سمع الله لمن حمده به یې وویله، بیا به یې په ولاړه ربنا لک الحمد وویلې، بیا به د الله اکبر د ویلو سره سجدې ته لاړو، بیا به د الله اکبر د ویلو سره د سجدې څخه را پورته شو، بیا به د الله اکبر ویلو سره سجدې ته لاړو، بیا به د الله اکبر د ویلو سره د سجدې څخه راپورته شو.

---

١-(العلل الواردة فی الاحادیث النبویه للدار قطنی ج٤ ص ١٠٦ سوال نمبر ٤٥٧ قلت انفرد برفعه عبد الرحیم بن سلیمان وهو ثقة).

٢-(صحیح مسلم ج١صـ ١٦٩، باب اثبات التکبیر فی کل خفض ورفع فی الصلوة)

## سجدې ته د تللو په وخت کې اول زنګنونه، بيا لاسونه، بيا تندی په ځمکه کېښودل

عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَضَعُ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ إِذَا سَجَدَ(۱)

د وائل ابن حجر رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به سجدې ته د تللو لپاره اول زنګنونه کېښودل، بيا به يې لاسونه کېښودل.

**سجده په اووه اندامونو کول:**

عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ أُمِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةِ أَعْضَاءٍ وَلَا يَكُفَّ شَعْرًا وَلَا ثَوْبًا الْجَبْهَةِ وَالْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ(۲)

د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دی چې: رسول الله صلی الله عليه وسلم په اوو اندامونو باندې د سجدې حکم کړی دی (او دا حکم يې کړی چې) خپل ويښته او جامې دې نه راغونډوي (هغه اووه اندامونه دادي) تندی، دواړه لاسونه، دواړه زنګنونه او دواړه پښې.

**په سجده کې درې ځله سبحان ربّی الاعلی ويل:**

عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ، فَقَالَ فِي رُكُوعِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَقَدْ تَمَّ رُكُوعُهُ، وَذَلِكَ أَدْنَاهُ، وَإِذَا سَجَدَ، فَقَالَ فِي سُجُودِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَقَدْ تَمَّ سُجُودُهُ، وَذَلِكَ أَدْنَاهُ(۳)

---

۱-(صحيح ابن خزيمه، ج۱صـ ۳۴۲، باب البدء بوضع الركبتين على الارض قبل اليدين)
۲-(صحيح البخاري، ج۱صـ ۱۱۲، باب السجود على سبعة اعظم)
۳-(جامع الترمذی ج۱صـ ۶۰، باب ما جاء فی التسبيح فی الركوع والسجود)

د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چې: چاچې په رکوع کې درې ځلې سبحان ربّی العظیم او په سجده کې درې ځلې سبحان ربّی الاعلی وویلې، نو دده رکوع او سجده پوره شوه او دا کمه مرتبه د (کاملې) رکوع او سجدې ده.

**د سجدو په منځ کې جلسه کول:**

ابی هریرة رضی الله عنه فرمایلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه کس ته چې لمونځ یې په اطمنان سره اداء کړی نه وو دا هم وفرمایل:

**ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا(١)**

بیا بنه په اطمنان سره سجده وکړه بیا د سجدې څخه راپورته شه او بنه په اطمنان سره جلسه وکړه.

**په سجده کې مخ د لاسونو په منځ کې کېښودل:**

**عَنْ وَائِلِ ابْنِ حَجَرٍ قَالَ: صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ إِذَا سَجَدَ وَضَعَ وَجْهَهُ بَيْنَ كَفَّيْهِ(٢)**

وائل ابن حجر رضی الله عنه فرمایلي دي چې: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم په اقتداء کې لمونځ وکړو، رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې سجده کوله، نو مخ مبارک به یې د ورغوو په منځ کې کېښودلو.

**په سجده کې د لاسونو دګوتو یوځای کول:**

**عَنْ وَائِلِ ابْنِ حَجَرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا سَجَدَ ضَمَّ أَصَابِعَهُ(٣)**

---

١-(مشكوة، ج١ص_٧٩، باب صفة الصلوة)

٢-(شرح معانی الاثار، ج١ص_١٨٢، باب وضع اليدين فی السجود اين ينبغی أن يكون)

٣-(صحيح ابن خزيمه، ج١ص_٣٤٧، باب الضم اصابع اليدين فی السُجود)

وائل ابن حجر رضی الله عنه فرمایلي دي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې سجده کوله نو ګوتې به یې یو ځای کولې

**په سجده کې د لاسونو د ګوتو قبلې ته مخامخ کول:**

حضرت حفص ابن عاصم رضی الله عنه څخه روایت دی چې: یوه ورځ مې د عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما په څنګ کې لمونځ وکړو، کله مې چې سجده کوله نو ګوتې به فراخه(کولاو) نیولې، نو عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما راته وفرمایل چې: ای وراره!

أُضْمُمْ أَصَابِعَكَ إِذَا سَجَدْتَ وَاسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَاسْتَقْبِلْ بِالْكَفَّيْنِ الْقِبْلَةَ فَإِنَّهُمَا يَسْجُدَانِ مَعَ الْوَجْهِ(١)

کله چې سجده کوې نو ګوتې را غونډې نیسه او د قبلې ته یې مخامخ کوه، او خپل ورغوي هم قبلې ته مخامخ کوه، ځکه چې دا هم د مخ سره سجده کوي.

**په سجده کې د پښو ګوتې قبلې ته مخامخ کول:**

د ابو حُمید الساعدي رضی الله عنه د حدیث په اخر کې راځي چې:

وَاسْتَقْبَلَ بِأَطْرَافِ أَصَابِعِ رِجْلَيْهِ الْقِبْلَةَ(٢)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به په سجده کې د پښو ګوتې قبلې ته مخامخ کړې.

**څنګلې د اړخ څخه جدا ساتل:**

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَالِكٍ ابْنِ بُحَيْنَةَ الْأَسْدِيِّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ حَتَّى نَرَى إِبْطَيْهِ قَالَ وَقَالَ ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا بَكْرٌ بَيَاضَ إِبْطَيْهِ(٣)

---

١-(مصنف عبدالرزاق،باب السجود ، رقم ٢٩٣٨)

٢-(صحیح البخاري، ج١صـ ١١٤، باب سنة الجلوس فی التشهد)

٣-(صحیح البخاري، ج١صـ ١١٢، باب یبدی ضبعیه ویجافی فی السجود)

د حضرت عبد الله ابن مالک رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله سجد کوله، نو لاسونه به یې د ازخونو څخه دومره لرې ساتل چې د تخرګونو سپین والی به یې ښکاریدو.

**د سجدې په حال کې څنګلې په زمکه نه لګول:**

عَنِ الْبَرَاءِ رضی الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدْتَ فَضَعْ كَفَّيْكَ وَارْفَعْ مِرْفَقَيْكَ(١)

د حضرت براء رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې کله چې تاسو سجده کوئ نو ورغوي په زمکه کیږدئ او څنګلې پورته وساتئ.

## غیر معذور ته دوهم رکعت ته د پورته کیدلو په وخت کې (انیغ ودریدل) جلسه استراحت نه کول

(۱) په بخاري شریف کې د مسئ الصلوة مشهور حدیث دی، د ابو هریرة ﷺ څخه روایت دی چې نبي کریم ﷺ خلاد بن رافع ته د لمانځه صحیح طریقه ښودله، نو د سجدې د خودنې څخه روسته یې ورته وفرمایل: (ثم ارفع حتی تستوی قائماً ثم افعل ذلک فی صلوتک کلها) یعنې بیا د دوهمې سجدي څخه وروسته نیغ ودریږه، نو دلته رسول الله ﷺ د سیده دریدو حکم کړی دی، او د ناستې ذکر یې ندی کړی (بخاري ج ۲ صفحه ۹۲۴ و ۹۸۶)

امام بخاري رحمه الله دا حدیث په بله طریقه هم روایت کړی دی په هغې کې د (حتی تستوي قایماً) پر ځای (حتی تطمئن جالساً) دی(١)

---

١- (صحیح مسلم، ج ١ صـ ١٩٤، باب الاعتدال فی السجود الخ)

مګر حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې دا د کوم راوي وهم دی او صحيح روايت (حتی تستوي قايما) دی. (۲)

(۲) د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه په حديث کې دي، چې په څلور رکعته لمونځ کې دوه ويشت تکبيره سنت دي. (۳)

محدث کبير امام طحاوي فرمايي چې: لمونځ د قولي او بدني عبادت مجموعه ده پدې کې چې ديو حالت څخه د بل حالت ته طرفته انتقال کيږي، نود (اقم الصلوة لذکري) مطابق ذکر ورسره کيږي، مثلاً د قيام څخه چې رکوع ته ځي الله اکبر ورسره ويل کيږي، د رکوع څخه چې قومې ته ځي سمع الله لمن حمده ورسره ويل کيږي دا رنګه سجدو ته د تللو او د سجدو څخه د جګيدلو په وخت کې الله اکبر ويل کيږي، لکن د دې جلسې لپاره شريعت هيڅ ذکر ندی مقرر کړی، کنه بيا به تکبيرات دوه ويشت نه بلکه څلور ويشت شي، نو داسې فعل چې د ذکر څخه خالي وي، لکه جلسه د استراحت، په عبادت او په افعالو د لمانځه کې نه شي شمارل کيدي ځکه چې د دې قول د الله ﷻ مخالفت لازميږي چې (اقم الصلوة لذکري) (۴)

(۳) حضرت ابو هريرة رضی الله عنه فرمايي چې: (کان النبي ﷺ ينهض علی صدور قدميه) (ترمذي باب کيف النهوض من السجود) يعني رسول الله ﷺ به په خپلو

---

۱-(بخاري ج ۲ ص: ۹۲٤) کتا ب الاستيذان باب من رد فقال عليک السلام.

۲-(فتح الباري ج ص۲۳۱).

۳-(بخاري ج ۱ صفحه ۱۰۸)

٤- طحاوي ج ۲ص ٤٤٤].

بن اياس ضعيف دی ،لکن پدې باندې داهل علمو عمل دی، يعنې دمؤيد بالعمل پښو مبارکو سيده ودريدلو ، امام ترمذي فرمايې چې ددې حديث يو راوي خالد کيدو له وجې دا ضعف مضر ندی.

(۴) غير مقلدين د رفع اليدن په مسئله کې دابو حميد الساعدي ﷺ حديث دلسو صحابه وو دتائيد سره په ډير زور او شور سره پيش کوي، لکن په همدغې حديث کې دجلسې داستراحت په باره کې ورته دا الفاظ په نظر ښخه ورځي چې رسول الله ﷺ ددوهمي سجدې ښخه سيده ځګ شوی دی او ناست ندی، يعنې (جلسه داستراحت يې نده کړې(۱)

(۵) حضرت ابو مالک اشعری ﷺ چې کله خپل ټول قوم ته درسول الله ﷺ دلمونځ طريقه ورخودله نو په هغې کې يې داول تکبير ښخه ما سوی په بل هيڅ ځای کې رفع الدين ونکړل او نه يې پکې جلسه داستراحت وکړه. (۲)

(۶) امام شعبی چې دپنځو سوو صحابه وو زيارت يې په نصيب شوی وو ، فرمايې چې حضرت عمر ﷺ حضرت علي ﷺ او درسول الله ﷺ نور صحابه کرام رضوان الله عليهم به په خپلو قدمونو سيده ځګيدل (جلسه داستراحت به يې نکوله)(۳)

(۷) حضرت نعمان بن ابي عياش ﷺ فرمايې چې: (ادركت غير واحد من اصحاب النبي ﷺ كانوا ينهضون فى الصلوة على صدور اقدامهم).يعنې ما ډيرو

۱-( طحاوي ج صفحه ٤٤٤ )
۲-(مسنداحمد صفحه ٣٤٣ ج ٥ )
۳- مصنف ابن ابى شيبه صفحه ٣٩٤ ج ١ ، نصب الرايه ج ١ صفحه ٣٨٩]

صحابه وو سره ملاقات کړی دی، پدوی کې هیڅا جلسه د استراحت نکوله، بلکه پخپلو پښو به سیده دریدل (١)

(٨) حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ حضرت عبدالله عمر ﷺ حضرت عبدالرحمن بن ابي لیلی رحمة الله علیه حضرت ابن عمر ﷺ حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله یو هم جلسه د استراحت نه کوله(٢)

(٩) د ایوب سختیاني رحمه الله د کلام حاصل دادی، چې ما دیو بوډا (عمرو بن سلمة ﷺ څخه ما سوی نور هیڅوک په جلسه د استراحت ندي لیدلي (٣)

(١١) حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ په لمانځه کې جلسه د استراحت نده کړې. (٤)

(١٠) حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ هم دا جلسه نکوله. [معجم طبراني کبیر (٥)

امام عبد البر رحمه الله وغیره رحمهم الله فرمایې چې امام مالک رحمة الله علیه امام محمد رحمة الله علیه امام اوزاعي رحمة الله علیه او امام ثوری رحمة الله علیه هم د جلسې د استراحت قایل نه وو. (٦)

(١١) حضرت ابو سعید خدري ﷺ هم جلسه د استراحت نه کوله (٧)

---

١-( مصنف ابن ابي شيبه صفحه ٣٩٤ ج١) وفي الرواية قام كما هو ولم يجلس ص٣٩٥].

٢-(مصنف عبد الرازق ج ٢ صفحه ١٧٨)

٣- ( بخاري صفحه ١١٣ ج١)

٤- مصنف ابن ابي شيبة ج١/ ص٣٩٤].

٥- ج١/ ص٢٦٦]. بهيقي ج٢/ ص١٢٥].

٦-(تمهيد، كتاب الحجه صفحه ٣١٧ ج ١] الجوهر النقي ج٢/ ص١٢٥].

٧- ( بهيقي ج٢/ ص١٢٥انصب الرايه ج ١ صفحه ٣٨٩)

**دعذر یا د بوډاوالي له وجې نه جلسه د استراحت کول:**

دبخاري په کوم حدیث کې چې د جلسې د استراحت ذکر دی، نو خپله دد ې حدیث یو راوي ایوب سختیاني رحمة الله علیه فرمایې چې یو بوډا به په لمانځه کې جلسه د استراحت کوله یعنې (عمرو بن سلمه رضي الله عنه) (۱)

**په دوهم رکعت کې د الحمدلله څخه مخکې بسم الله لوستل:**

عَنْ اِبْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ لَا يَضَعُ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَبْلَ السُّوْرَةِ وَبَعْدَهَا إِذَا قَرَأَ بِسُوْرَةٍ أُخْرٰى فِي الصَّلٰوةِ (۲)

عبدالله ابن عمر رضی الله عنه به د سورة فاتحې څخه مخکې بسم الله الرحمن الرحیم لوستله او ددې څخه وروسته دبل سورة څخه مخکې به یې هم لوستله.

**اول رکعت اوږد او دوهم رکعت لنډ کول:**

ابو قتادة رضی الله عنه فرمایلي دي چې:

كَانَ يُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُوْلٰى مِنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ وَيُقَصِّرُ فِي الثَّانِيَةِ (۳)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به د سحر د لمانځه اول رکعت اوږد او دوهم رکعت لنډ کولو.

**د هر دوه رکعتونو څخه وروسته قعده کول:**

ام المومنین حضرت عایشه صدیقه رضی الله عنها فرمائي چې:

(كَانَ يَقُوْلُ فِيْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّةَ).

رسول الله ﷺ به فرمایل چې په هر دوو رکعتونو کې التحیات ده. (۱)

---

۱-(بخاري ج۱ صفحه ۱۱۳) رقم الحدیث ۸۲۴].

۲-(شرح معان الاثار، ج۱صـ ۱٤٦، باب قرائة بسم الله الرحمن الرحیم فی الصلوة)

۳-(صحیح البخاري، ج۱صـ ۱۰۵، باب القرائة فی الظهر)

## په قعده کې د چپې پښې څملول او د ښي پښې ودرول او په چپه (ګسه) پښه کېناستل

عَنْ عَبْدِاللهِ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وَقَالَ: اِنَّمَا سُنَّةُ الصَّلوةِ أَنْ تَنْصِبَ رِجْلَكَ الْيُمْنٰى وَتَثْنِيَ الْيُسْرٰى (۱)

عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما فرمايلي دي چې: دلمانځه سنت دادي چې په تشهد کې ښی پښه ولاړه وساتې او چپه (ګسه) پښه څملوې.

عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَفْتِحُ الصَّلوٰةَ بِالتَّكْبِيْرِ وَكَانَ يَفْرِشُ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَيَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنٰى (۲)

حضرت عائشې رضی الله عنها فرمايلي دي چې: رسول الله صلی الله عليه وسلم به د تکبير سره لمونځ شروع کول او (په تشهد کې به يې) چپه (ګسه) پښه څملوله او ښی پښه به يې ودروله.

**د تشهد الفاظ:**

اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ، اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ (۳)

**په تشهد کې دګوتې سره اشاره کول او بيا بيا د ګوتې نه خوزول :**

عَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُشِيْرُ بِإِصْبَعِهِ إِذَا دَعَا وَلَا يُحَرِّكُهَا (۴)

---

۱- ( مسلم ج ۱ص ۱۹٤ ) باب مايجمع صفة الصلوة ... الخ

۲- (صحيح البخاري، ج۱ص ۱۱٤، باب سنة الجلوس فى التشهد)

۳-(صحيح مسلم، ج۱ص ۱۹۵، باب ما يجمع صفة الصلوة)

٤-(صحيح البخاري ،كتاب الادب باب أخذ باليدين)

رسول الله صلى الله عليه و سلم به په ګوته اشاره کوله او بیا بیا به یې نه خوزوله.

**په تشهد کې ګوته اوچتول او بیا ښکته کول:**

وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ: كَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلَاةِ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ وَأَتْبَعَهَا بَصَرَهُ ثُمَّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَهِيَ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنَ الْحَدِيدِ» يَعْنِي السبابَة. (۲)

عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما به چې کله په لمانځه کې (په تشهد) کېناستلو لاسونه به یې په زنګنونو کېښودل او په ګوته به یې اشاره وکړه او نظر به یې د ګوتې د اشارې څخه مخکې کولو نه، بیا به یې فرمایل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې خامخا دګوتې اشاره په شیطان باندې د اوسپنې دګزار څخه سخته لګیږي.

فائدة: ددې څخه معلومیږي چې په ګوته باندې د اشارې کیفیت دادی چې اوچته به کړی شي او بیا به ټیټه کړی شي، ځکه چې د اوسپنې ګزار وچتولی شي او بیا ټیټولی شي.

**په اوله قعده کې صرف تشهد لوستل:**

عَنِ الْحَسَنِ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: لَا يَزِيدُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ عَلَى التَّشَهُّدِ. (۳)

حسن بصري رحمه الله فرمايلي دي چې: لمونځ ګزار دې په اولو داوړو رکعتونو کې د تشهد څخه زيات څه نه وايي.

---

۱-(سنن النسائی، ج۱صـ۱۸۷، باب بسط الیسری علی الرکبة)

۲- رَوَاهُ أَحْمَد

۳-(مصنف ابن ابی شیبه،ج۳صـ ٤۷، قدر کم یقعد فی الرکعتین الأولیین، رقم ۳۰۳۸)

**تشهد (التحيات) پټ لوستل:**

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: مِنَ السُّنَّةِ أَنْ يُخْفِيَ التَّشَهُّدَ(۱)

عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه فرمايلي دي چې: سنت طريقه دادی چې تشهد پټ ولوستلی شي.

**دريم ركعت ته د تكبير سره اوچتيدل:**

عَنْ مُطَرِّفِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَا وَعِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ فَكَانَ إِذَا سَجَدَ كَبَّرَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ كَبَّرَ وَإِذَا نَهَضَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ كَبَّرَ(۲)

دمطرف بن عبد الله رضی الله عنه څخه روايت دی چې ما او عمران بن الحصين د حضرت علي رضی الله عنه پسې لمونځ وکړو، نو هغه به د الله اکبر سره سجده كوله او د الله اکبر سره به د سجدې څخه را وچتيدلو او چې کله به دريم رکعت ته اوچتيدلو نو الله اکبر به يې ويل.

**دلمانځه په اخری رکعتونو کې د سورة فاتحې لوستل، چپ ودريدل اود تسبيح لوستل درې واړه جايز دي**

عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ رحمة الله عليه، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأَوَّلَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ، وَقُرْآنٍ، وَفِي الْعَصْرِ مِثْلَ ذٰلِكَ، وَفِي الْأُخْرَيَيْنِ مِنْهُمَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ، وَفِي الْمَغْرِبِ فِي الْأُولَيَيْنِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ، وَقُرْآنٍ، وَفِي الثَّالِثَةِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ" قَالَ عُبَيْدُ اللهِ رحمة الله عليه: وَأُرَاهُ قَدْ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ(۳)

---

۱-(سنن ابی داود باب اخفاء التشهد، ج۱ص ۱۴۹)

۲-(صحيح البخاري، ج۱ص ۱۱۴)

۳- (طحاوی ص۱۴۲/ ج۱).

د حضرت عبد الله بن ابی رافع رحمه الله څخه روایت دی چې حضرت علی ﷛ به په اولنیو دوو رکعاتونو د ماسپښین کې سورة فاتحه او یو بل سورة د قران لوستلو، همدارنګه به یې د ماز یګر د لمانځه په اولنیو دوه رکعتونو کې کول او په وروستیو دوو رکعتونو کې به یې سورة فاتحه لوستله او د ماښام په لمانځه کې به یې هم په اولنیو دوه رکعتونو کې سورة فاتحه او ورسره یو سورة د قران لوستلو او په اخري رکعت کې به یې صِرف سورة فاتحه لوستله، حضرت عبد الله رحمه الله فرمایي چې زما خیال دی چې حضرت علی ﷛ دا عمل د رسول الله ﷺ څخه نقل کړی دی.

(۲) عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: شَكَا أَهْلُ الكُوفَةِ سَعْدًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ إِلَى عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، فَعَزَلَهُ، وَاسْتَعْمَلَ عَلَيْهِمْ عَمَّارًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، فَشَكَوْا حَتَّى ذَكَرُوا أَنَّهُ لاَ يُحْسِنُ يُصَلِّي، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: يَا أَبَا إِسْحَاقَ! إِنَّ هَؤُلاَءِ يَزْعُمُونَ أَنَّكَ لاَ تُحْسِنُ تُصَلِّي، قَالَ أَبُو إِسْحَاقَ رحمة الله عليه: أَمَّا أَنَا وَاللهِ «فَإِنِّي كُنْتُ أُصَلِّي بِهِمْ صَلاَةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَخْرِمُ عَنْهَا، أُصَلِّي صَلاَةَ العِشَاءِ، فَأَرْكُدُ فِي الأُولَيَيْنِ وَأُخِفُّ فِي الأُخْرَيَيْنِ»، قَالَ: ذَاكَ الظَّنُّ بِكَ يَا أَبَا إِسْحَاقَ! الحديث. (۱)

د جابر بن سمرة ﷛ څخه روایت دی چې اهل الکوفه وو د سعد ﷛ څخه حضرت عمر ﷛ ته شکایة وکړو هغه حضرت سعد ﷛ معزول کړو او د هغه پر ځای عمار بن یاسر ﷛ مقرر کړو او د دوي شکایت تر دې پورې وو چې دا یې هم یاده کړه چې هغه مونږ ته ښه لمونځ هم نه راکوي. حضرت عمر ﷛ حضرت سعد ﷛ ته پیغام ورولیږلو او ورته یې و فرمایل چې: دا خلق په تا دا ګمان کوي چې ته دوي ته ښه لمونځ نه ورکوي! هغه وویل چې قسم په الله چې زه دوی ته هغسې لمونځ کوم لکه

۱-[بخاری، ج۱ ص۱۰٤]

د رسول الله ﷺ او هيڅ کمی او نقصان پکې نه کوم، زه ورته د ماسخوتن دوه اولني رکعتونه اوږدوم او وروستي رکعتونه ورته مختصر کوم، حضرت عمر ﷛ ورته وفرمايل چې: ای ابا اسحاقه زما هم په تا همداګمان و.

(۳) عَنْ أَبِي عَوْنٍ مُحَمَّدِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ الثَّقَفِيِّ رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لِسَعْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: لَقَدْ شَكَوْكَ فِي كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى الصَّلَاةِ، قَالَ: «أَمَّا أَنَا، فَأَمُدُّ فِي الأُولَيَيْنِ وَأَحْذِفُ فِي الأُخْرَيَيْنِ، وَلَا آلُو مَا اقْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» قَالَ: صَدَقْتَ ذَاكَ الظَّنُّ بِكَ أَوْ ظَنِّي بِكَ (۱)

د ابو عون رحمه الله څخه روايت دی، فرمائي ما اوريدلي د حضرت جابر بن سمرة ﷛ څخه، هغه به فرمايل چې حضرت عمر ﷛ حضرت سعد ﷛ ته وفرمايل چې دغه خلک ستا څخه شکايت کوي، په هر شي کې، تردې چې په لمونځ کې هم شکايت کوي. سعد ﷛ وفرمايل چې زه په اولنيو دوه رکعاتونو کې اوږده قرائت کوم او په وروستنيو رکعتونو کې مختصر قرائت کوم. حضرت عمر رضی الله تعالی عنه وفرمايل چې رشتيا دې وويل! هم داسې ګمان مې په تا باندې دی

(٤) عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ قَالَ: «كَانَ - يَعْنِي عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - يَقْرَأُ فِي الْأُولَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَسُورَةٍ، وَلَا يَقْرَأُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ (۲)

حضرت عبد الله بن ابی رافع رحمه الله فرمائي چې: حضرت علی ﷛ به د ماسپښين او مازيګر په اولنيو دوه رکعاتونو کې سورة فاتحه او يو بل سورة د قران لوستلو او په دوه وروستيو رکعاتونو کې يې قرائت نه کولو.

---

۱- ( بخاری ج ۱ص ۱۰٦).

۲- (مصنف عبدالرزاق ج۲ص ۱۰۰].

(۵) عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ رحمه الله، عَنْ عَلِيٍّ وَعَبْدِ اللَّهِ رضي الله عنهما، أَنَّهُمَا قَالَا: «اقْرَأْ فِي الْأُولَيَيْنِ، وَسَبِّحْ فِي الْأُخْرَيَيْنِ». (۱)

د حضرت ابو اسحاق رحمه الله څخه روایت دی چې حضرت علی رضي الله عنه او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه دواړو به فرمایل چې په اولنیو دوه رکعتونو کې قرائت وکړئ او په وروستیو کې تسبیحات ولولئ!

(٦) عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ: «يُسَبِّحُ وَيُكَبِّرُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ. (۲)

حضرت علی رضي الله عنه فرمايي چې په وروستیو دوه رکعتونو کې به تسبیحات او تکبیرات لوستلی شي.

(۷) عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله قَالَ: «مَا قَرَأَ عَلْقَمَةُ رحمه الله فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ حَرْفًا قَطُّ». (۳)

حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائي چې حضرت علقمه رحمه الله په وروستیو رکعاتونو کې یو حرف قرائت هم ندی کړی.

(۸) عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله قَالَ: «اقْرَأْ فِي الْأُولَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُورَةٍ، وَفِي الْأُخْرَيَيْنِ سَبِّحْ» (۴)

حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائي چې په اولنیو دوه رکعتونو کې سورة فاتحه او یو بل سورة ولوله او په وروستیو دوه رکعتونو کې تسبیحات کوه!

---

۱-(مصنف ابن ابی شیبه ج ۱ ص ٤٠٨].
۲-( مصنف ابن ابی شیبه ج ۱ ص ٤٠٩)
۳-(مصنف عبدالرزاق ج ۲ ص ۱۰۱)
٤-(مصنف عبدالرزاق ج ۲ ص ۱۰۱].

**اخره قعده کول:**

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: عَلَّمَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلتَّشَهُّدَ فِيْ وَسَطِ الصَّلٰوةِ وَفِيْ اٰخِرِهَا(۱)

عبد الله ابن مسعود رضى الله عنه فرمايلي دي چې: ماته به رسول الله صلى الله عليه وسلم تشهد رابنودلو دلمانځه په منځ کې هم او دلمانځه په اخر کې هم.

**د تشهد څخه وروسته درودشريف لوستل:**

عَنْ فَضَالَةَ بْنَ عُبَيْدٍ يَقُولُ سَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم رَجُلاً يَدْعُو فِى صَلاَتِهِ لَمْ يُمَجِّدِ اللَّهَ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ «عَجِلْتَ أَيُّهَا الْمُصَلِّى». ثُمَّ عَلَّمَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَسَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ رَجُلاً يُصَلِّى فَمَجَّدَ اللَّهَ وَحَمِدَهُ وَصَلَّى عَلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ «ادْعُ تُجَبْ وَسَلْ تُعْطَ(۲)

حضرت فضالة بن عبيد رضى الله عنه فرمايلي دي چې: يو سړي په لمانځه کې نه د الله تعالى حمدوويلې اونه يې په نبي کريم صلى الله عليه وسلم درود وويلې، نورسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې: اى لمونځ کونکيه! تا تلوار(جلتي) وکړه، بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم خلکو ته طريقه وښودله (چې اول حمد او ثناء او بيا په رسول الله صلى الله عليه وسلم درود ووايئ)بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم يو بل سړی وليدلو چې لمونځ کوي، او د الله تعالى دحمد او لويي يې بيان کړه او په نبي کريم صلى الله عليه وسلم يې درود شريف

---

۱- (مسند احمد رقم۴۳۸۲)

۲-(سنن النسائي، ج۱صـ ۱۸۹،باب التحميد والصلوة على النبى صلى الله عليه وسلم فى الصلوة)

ووېلې، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: چې دعا وکړه ستا دعا قبلېږي او د الله تعالی څخه یې غواړه، تاته درکولی کیږي.

**د درود شریف الفاظ:**

کعب ابن عجره رضی الله عنه فرمایلي دي چې:

سَأَلْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ الصَّلَاةُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ فَإِنَّ اللَّهَ قَدْ عَلَّمَنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكُمْ قَالَ قُولُوا اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ اللَّهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ(۱)

مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم په تاسو او اهل بیتو څنګه درود ووایو؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم راته وفرمایل چې داسې ووایئ:

اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ اللَّهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ.

**د درود شریف څخه وروسته دعاء:**

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كُنَّا إِذَا كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ قُلْنَا السَّلَامُ عَلَى اللَّهِ مِنْ عِبَادِهِ السَّلَامُ عَلَى فُلَانٍ وَفُلَانٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُولُوا السَّلَامُ عَلَى اللَّهِ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ السَّلَامُ وَلَكِنْ قُولُوا التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ فَإِنَّكُمْ إِذَا قُلْتُمْ أَصَابَ كُلَّ

---

۱-(صحيح البخاري، ج۱ صـ ۴۷۷)

عَبْدٍ فِي السَّمَاءِ أَوْ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ ثُمَّ يَتَخَيَّرُ مِنَ الدُّعَاءِ أَعْجَبَهُ إِلَيْهِ فَيَدْعُو(١)

حضرت عبدالله ابن مسعود رضى الله عنه فرمايلي دي چې مونږ درسول الله صلى الله عليه وسلم پسې لمونځ كولو، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چې السلام على الله مه وايئ، ځكه چې صرف الله تعالى دسلامتيا وركونكى دى، كله چې په تاسو كې څوك لمونځ كوي نو هغه ته پكار دي چې داسې ووايي: التحيات لله الخ نو بيا هغه ته اختيار دى چې كومه دعاء يې خوښه وي هغه دې وغواړي.

**د لمونځ ختمول په سلام سره:**

حضرت عايشې رضى الله عنها فرمايلي دي چې:

كَانَ يَخْتِمُ الصَّلَاةَ بِالتَّسْلِيمِ(٢)

رسول الله صلى الله عليه وسلم به لمونځ په سلام سره ختمولو.

**د سلام الفاظ:**

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ "كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ، وَعَنْ يَسَارِهِ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ(٣)

د حضرت عبدالله ابن مسعود رضى الله عنهما څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به ښي او چپ(گس) طرف ته سلام اړولو (او داسې به يې ويل): السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ

---

١- (صيحح البخاري، ج١صـ ١١٥، باب ما يتخير من الدعاء بعدالتشهد وليس بواجب)

٢-(صحيح مسلم ج ١صـ ١٩٥، باب ما يجمع صفة الصلوة)

٣- (جامع الترمذي ،ج١ صـ٦٥، باب ما جاء فى التسليم فى الصلوة)

**د سلام کیفیت:**

**عَنْ سَعْدٍ قَالَ: كُنْتُ أَرَى رَسُولَ اللَّهِ ﷺ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ(١)**

حضرت سعد رضی الله عنه فرمايلي دي چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلو چې ښي او چپ (ګس) طرف ته يې سلام واړولو، تر دې چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اننګو سپين والی ولیدلو.

**د سلام څخه وروسته د امام مقتديانو ته مخ ګرزول:**

**عَنْ سَمُرَةَ ابْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا صَلَّى صَلاَةً أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ(٢)**

دحضرت سمرة ابن جندب رضی الله عنه څخه روايت دی چې: رسول الله صلی الله عليه وسلم به د لمانځه څخه فارغ شو نو مونږ ته به يې مخ را واړه ولو او کېناستلو

**المانځه څخه وروسته اذکار:**

د سلام اړه ولو څخه وروسته د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه په مختلفو وختونو کې مختلف اذکار روايت شوي دي مثلا: (۳۳) ځله سبحان الله (۳۳) ځله الحمد لله (۳۳) ځله الله اکبر (٣)

د حضرت ثوبان رضی الله عنه په حديث کې ددې سره اللهم انت السلام ومنك السلام تبارکت ذا الجلال والاکرام هم راغلی دی (٤)

١-(صحيح مسلم، ج١ص ٢١٦، نسائي ج١ص ١٩٤ باب كيف السلام على اليمين)
٢-(صحيح البخاري، ج١ص ١١٧، باب يستقبل الامام الناس اذا سلم)
٣- (صحيح البخاري، ج١ص ٢١٩، باب استحباب الذكر بعدالصلوة)
٤-(صحيح مسلم، ج١ص ٢١٨، باب استحباب الذكر بعد الصلوة)

## دلمانځه څخه وروسته په اجتماعي طريقه باندې دعا اود لاسونو اوچتول مستحب دي

(۱) أَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ! أَيُّ الدُّعَاءِ أَسْمَعُ؟ قَالَ: جَوْفَ اللَّيْلِ الآخِرِ، وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ. (۱)

د حضرت ابوامامة رضي الله عنه څخه روايت دى، فرمائي چې: يو چا له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه سوال وکړو چې الله جل جلاله کومه دعا بنه قبلوي؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې دشپې په اخره حصه کې اود فرض لمانځه څخه وروسته.

(۲) عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ مِنَ الصَّلَاةِ، قَالَ: «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ، وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ، وَمَا أَسْرَفْتُ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ». (۲)

دحضرت علی رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې دلمانځه څخه فارغ شونو دادعا به يې کوله چې اللّٰهُمَّ اغفرلي... الي اخرالحديث.

(۳) وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ لَمْ يَحُطَّهُمَا حَتَّى يمسح بهما وجهه. (۳)

رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې په دعاء کې لاسونه اوچت کړل، نو بيرته به يې ترهغې پورې نه راواپس کول ترڅو به يې چې په مخ نه وو راکاږلي.

---

۱-( ترمذی ج ۲ص ۱۸۷).

۲- (ابوداود ج ۱ ص ۲۱۹).

۳- (ترمذی ج۲ص ۱۷٦).

(۴) امام البخاري په صحيح البخاري ج ۲ص ۷۲ ) کې باب قائم کړی دی په نوم د(باب الدعاء بعد الصلوة) ددې په تشريح کې حافظ ابن حجر فرمايي : قَوْلُهُ بَابُ الدُّعَاءِ بَعْدَ الصَّلَاةِ) أَيِ الْمَكْتُوبَةِ وَفِي هٰذِهِ التَّرْجَمَةِ رَدٌّ عَلٰى مَنْ زَعَمَ أَنَّ الدُّعَاءَ بَعْدَ الصَّلَاةِ لَا يُشْرَعُ. (۱)

(۵) امام نسائي په خپل کتاب السنن الکبری کې باب قائم کړی دی په نوم د( مايستحب من الدعاء دبر الصلوة المكتوبات (۲)

(٦) امام عبد الرزاق په خپل مصنف کې باب قائم کړی دی په نوم د( باب مسح الرجل وجهه بيده اذا دعا (۳)

**د وترو د مسئلې اجمال:**

د وترو په باره کې (۱۰) مسئلې دي : (۱) وتر واجب دي. (۲) وتر درې رکعته دي (۳) پوره کال درې رکعته دي. (۴) صرف په اخر کې سلام(يعنې درې رکعته په يو سلام دي) (۵) دوه قعدې لري (۶) په هر رکعت کې يو سورة ، يعنې درې سورتونه لوستل کيږي. (۷) د دعا قنوت الفاظ (۸) د عاء قنوت قبل الرکوع دی (۹) رفع اليدين عند القنوت (۱۰) يو وضاحت

**اوله مسئله:** وتر واجب دي : د ابو ايوب انصاري رضی الله عنه په حديث کې د رسول الله ﷺ صريحي فرمان دادی چې وتر واجب دي رسول الله ﷺ فرمائي (الوترحق واجب على كل مسلم) (۱)

---

۱-(فتح الباري ج۱۱ص ۱۳۳، کتاب الدعوات ، دارالمعرفة ، بيرت)

۲- (السنن الكبرى للنسائی ج ۹ص ۴۷، کتاب عمل اليوم والليلة ، مؤسسة الرسالة، بيروت)

۳- (مصنف عبدالرزاق ج ۲ص ۲۵۲ ، کتاب الصلوة، المتكتبة الاسلامی بيروت)

دحضرت بريدة ﷺ څخه روايت دی چې مادرسول الله ﷺ څخه واوريدل چې فرمايل يې . اَلْوِتْرُحَقٌّ،فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا! اَلْوِتْرُحَقٌّ،فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا! اَلْوِتْرُحَقٌّ، فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا. (١)

يعنې وتر ثابت اولازم دي چاچې وتر ونکړل هغه زمونږ څخه نه دی، وتر ثابت اولازم دي چاچې وترونکړل هغه زمونږ څخه نه دی، وترثابت اولازم دی چاچې وترونکړل هغه زمونږ څخه نه دی .( حاکم اوذهبی ورته صحيح ويلي دي)(٢)

**دوهم مسئله:** وتر درې رکعته دي:

**دريمه مسئله:** پوره کال درې رکعته دي:

ددواړو مسئلو لپاره دليل: حضرت عايشه رضی الله عنه فرمايي چې:

مَاكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلَافِي غَيْرِهِ عَلَى إِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُصَلِّي أَرْبَعًا، فَلَاتَسَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي أَرْبَعًا، فَلَاتَسَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي ثَلَاثًا (٢)

رسول الله صلی الله عليه وسلم به ټول کال د اتو رکعاتو تهجدو څخه وروسته درې رکعته وتر کول.

نو په دې حديث کې درې رکعته راغلل او ټول کال درې رکعته شوي دي.

---

١- اخرجه احمد وابن حبان واصحاب السنن الا الترمذی واخرجه ابو داود ا لطيالسي موقوفاً، رقم الحديث ٥٩٣.

٢-(مشكوة باب الوتر، فصل ثالث)

٣- (ج ١ ص ٣٠٦).

٤-(صحيح البخاري ج ٥صـ ١٥٤، باب قيام النبی بالليل وصحيح مسلم ج ١صـ ٢٥٤)وعدد رکعات النبی صلى الله عليه وسلم )

**څلورمه مسئله:** صرف په اخر کې سلام يعنې درې رکعته په يو سلام دي، امام حاکم اول په دوو سندونو باندې د حضرت سعيدبن ابى عروبه عن قتادة عن زرارة بن ابى اوفى عن سعدبن هشام عن عايشة رضى الله عنها څخه دا حديث رانقل کړى دى.

كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ.

چې رسول الله ﷺ دوتر دا اولود وا ړو رکعتونو څخه وروسته سلام نه دى ګرځولى اوليکلي يې دي چې دا حديث د بخاري او د مسلم په شرط صحيح دى. (١)

**پنځمه مسئله:** دوه قعدې: ام المومنين حضرت عايشه صديقه رضى الله عنها فرمائي چې: (كَانَ يَقُولُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّةَ). رسول الله ﷺ به فرمايل چې په هرو دوو رکعتونو کې التحيات ده. (٢)

**شپږمه مسئله:** په هر رکعت کې يو سورة: امام ترمذي رحمه الله د باب ما يقرأ فى الوتر، لاندې د عبد العزيز بن جريج روايت رانقل کړى دى چې:

كَانَ يَقْرَأُ فِي الْأُولَى: بِ {سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى}، وَفِي الثَّانِيَةِ بِ {قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ}، وَفِي الثَّالِثَةِ بِ {قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ}، وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ.

د حضرت ابن عباس رضى الله څخه روايت دى چې:

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْوِتْرِ: بِ {سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى} وَ {قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ}، وَ {قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ}، (٢)

---

١-(مستدرک حاکم، ج ١ص ٣٠٤، کتاب الوتر)

٢-(مسلم ج ١ص ١٩٤) باب مايجمع صفة الصلوة ... الخ

٣-(نسائي، ترمذي، تقريباً).

د څوارلسو صحابه وو څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ په درې رکعته وترو کې درې سورتونه لوستل. هغه څوارلس صحابه کرام (رضی الله عنهم) دادي:

حضرت بی بی عایشه رضی الله عنها، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ، حضرت عبدالله بن عباس ﷺ، حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ، حضرت أبی بن کعب ﷺ، حضرت علی ﷺ، حضرت عبدالله بن ابی اوفی ﷺ، حضرت نعمان بن بشیر ﷺ، حضرت ابوهریرة ﷺ، حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حضرت عمران بن حصین ﷺ حضرت معاویة بن خدیج ﷺ حضرت جابر ﷺ او حضرت ابوامامه ﷺ (۱)

**اوومه مسئله:** د دعاء قنوت الفاظ: دلته دوه حدیثونه واورئ!

اول: په یو روایت کې راځي چې حضرت ابو عبدالرحمن فرمایي چې: حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه مونږ ته دا الفاظ راوښودل:

اللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِينُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ، وَنُثْنِي عَلَيْكَ الْخَيْرَ، وَلَا نَكْفُرُكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَفْجُرُكَ، اللّٰهُمَّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ، وَلَكَ نُصَلِّي، وَنَسْجُدُ، وَإِلَيْكَ نَسْعٰى وَنَحْفِدُ، وَنَرْجُو رَحْمَتَكَ، وَنَخْشٰى عَذَابَكَ، إِنَّ عَذَابَكَ الْجِدَّ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ (۲)

دوهم: د حضرت حسن څخه روایت دی چې هغه به په قنوت کې دا الفاظ لوستل:

اللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِينُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ، وَنُثْنِي عَلَيْكَ الْخَيْرَ، وَلَا نَكْفُرُكَ وَنُؤْمِنُ بِكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَفْجُرُكَ، اللّٰهُمَّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ، وَلَكَ نُصَلِّي، وَنَسْجُدُ، وَإِلَيْكَ نَسْعٰى وَنَحْفِدُ، وَنَرْجُو رَحْمَتَكَ، وَنَخْشٰى عَذَابَكَ الْجِدَّ، إِنَّ عَذَابَكَ الْجِدَّ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ (۳)

---

۱-( ابن عبدالبر فی الاستیعاب ج ٤ص ۷۱ ا ترمذی ص ۱۰٦ ا نسائي ص ۲۵۱ ا ابن ماجه ص ۸۳ .دارقطنی ،ج۲ص ۳۵۵ طحاوي ،ج۱ص ۱۷۲ مستدرک حاکم ۲۰۵ وابوداود، ج۱ص ۲۰۸)

۲- (مصنف ابن أبی شیبه ، باب مایدعو به فی قنوت الفجر)

۳- (مصنف عبدالرزاق)

علماء كرامو دا دواړه جمع كړي دي او مشترك الفاظ يې دا ښودلي دي چې:

اللهم انا نستعينك ونستغفرك ونؤمن بك ونتوكل عليك ونثنى عليك الخير ونشرك ولانكفرك ونخلع ونترك من يفجرك ،اللهم اياك نعبد ولك نصلى ونسجد واليك نسعى ونحفد،ونرجوا رحمتك ونخشى عذابك ان عذابك بالكفار ملحق.

علامه سيوطي په الاتقان كې په النوع السابع والاربعين من الجزء الثاني كې فرمايي چې: دا دقران دوه سورتونه وو، سورة الخلع او سورة الحفد، اوس يې تلاوت منسوخ شوى دى: و أمر بهما انس بن مالك حين سئل عن القنوت فى الوتر (۱)

**اتمه مسئله:** دعاء قنوت به په دريم ركعت كې د ركوع څخه مخكې لولئ، په دريم ركعت كې اول سورة فاتحه ده بيا سورة دى ،بيا د الله اكبر سره رفع اليدين، بيا قنوت او بيا ركوع ده.

وَعَنْ عَاصِمٍ الْأَحول رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ الْقُنُوتِ فِي الصَّلَاةِ كَانَ قَبْلَ الرُّكُوعِ أَوْبَعْدَهُ؟ قَالَ: قَبْلَهُ (۲)

همدارنګه د حضرت أبى بن كعب رضى الله عنه څخه روايت دى چې:

أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، «كَانَ يُوتِرُ فَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوعِ» (۳)

د اكثرو صحابه كرامو رضى الله عنهم عمل همدا وو چې دعاء قنوت به يې، قبل الركوع لوستله (۴)

۱-(كذا فى معارف السنن ج ٤ص ٢٤٤)

۲- (مشكوة باب الوتر، الفصل الاول)

۳- (ابن ماجه، باب ماجاء فى القنوت قبل الركوع، وبعده ص ٧٣، والنسائى، باب كيف الوتر بثلاث)

٤-(التعليق الصبيح ج ٢ص ١٠٢)

